

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود
# د قرآن کریم زده کړه
## لومړی ټولګی




د ښوونکي لارښود د قرآن کریم زده کړه - لومړی ټولګی



درسي کتابونه د پوهنې په وزارت پورې اړه لري. په بازار کې
یې پیرودل او پلورل په کلکه منعه دی. له سر غړوونکو سره
به یې قانوني چلن وشي.

د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ ش.



**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب د پراختيا او د
ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
کتابونو د تاليف لوی رياست

# د ښوونکي لارښود
# د قرآن کريم زده کړه
# لومړی ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹٦ هـ . ش

**لیکوالان:**

- مایل آقا متقی
- عبدالسلام تائب
- شیر علی «همت»

**علمي او مسلکي ایډیټ:**

- محمد آصف کوچی

**د ژبې اډیټ:**

- عبدالقدوس ذکوخیل

**د څارنې کمېټه:**

- دکتور اسد الله محقق د پوهنې د وزارت د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس د مرکز مرستیال
- دکتور شېرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رییس
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف عمومي رییس

**کمپوز او ډیزاین:**

- فیض محمد (فیاض حسین خیل)



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه اسمان

په سینه کې د اسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم

**د پوهنې د وزير پيغام**

**ګرانو استادانو او ښوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختيا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعليمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتياوو له مخې رامنځته کيږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنيزې اړتياوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعليمي نصاب هم علمي او رغنده بدلون ومومي. البته نه ښايي چې تعليمي نصاب د سياسي بدلونونو او د اشخاصو د نظريو او هيلو تابع شي.

دښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتيب شوی دی. د تدريس د نويو ميتودنو له مخې فعاليتونه پکې ورزيات شوي دي. د زده کړې په بهير کې د زده کوونکو فعال ساتل د درسي پلان برخه شوې ده.

هيله من يم د دې کتاب منځپانګه، چې له لارښوونو او تعليمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د ميتودونو د کارولو له لارې تدريسيږي، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. د زده کوونکو له ميندو او پلرونو څخه غوښتنه کيږي، د خپلو لوڼو او زامنو په باکيفيته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې د پوهنې هيلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې برياوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعليمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤوليت لري.

د پوهنې وزارت تل زيار باسي چې د پوهنې تعليمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دين له بنسټونو او علمي معيارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتياوو له مخې پراختيا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصيتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له ميندو او پلرونو څخه هيله لرم چې د خپلو نظريو او رغنده وړانديزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په لا ښه تاليف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتيب کې يې مرسته کړې، له ملي او نړيوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعليمي نصاب په چمتو کولو او تدوين ، د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې يې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفيق

دکتور اسدالله حنيف بلخی

د افغانستان د اسلامي جمهوريت د پوهنې وزير

# لړلیک

## لومړی لوست

## سرلیک: د هجا حرفونه (ا، با)

مخ :

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- (ا، ب) حرفونه و پېژني
- د (ا، ب) حرفونه ښه تلفظ کړای شي
- د (ا، ب) حرفونو صحیح لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات**

په عربي ژبه کې د هجا ۲۸ حرفو دي چې په نورو ژبو لکه پښتو او دري کې هم مشترک دي.

–الف– د جوفي حرفونو له جملې څخه دی چې معین او معلوم مخرج نلري هغه ته حرف مد ویل کېږي.

او دغه حرف د مخکې متحرک حرف په واسطه د خولې له مینځ څخه تلفظ کیږي لکه با، جا، تا او ....

الف ساکن مخکې حرف یې متحرک یعنې مفتوح.

– د(ب) حرف مخرج: د (ب) حرف مخرج د دواړو شونډو د یوځای والي او بیا د شونډو د جدا والي په صورت کې مینځ ته راځي لکه أب او همدارنګه د(ب) حرف اقلاب حرف دی.

او هر کله چې د ساکن نون او تنوین څخه وروسته (ب) راشي ساکن نون او تنوین په میم بدلیږي لکه مِنۡ، بَعدِ، عَلِیم بِذٰاتِ الصُدُورْ.

د تدریس په وخت کې د «ب» حرف (با) تلفظ کیږي.

د تدریس تګ لارې: انفرادي، سوال او ځواب او مطالعه.

مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵<br>دقيقه | ښاغلی ښوونکی د حال او احوال پوښتنې څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي بيا شاګردانو ته د قرآن کريم د زده کړې په هکله معلومات ورکوي او د قرآن کريم د اهميت او ګټو په هکله ورسره خبرې اترې کوي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نيسي. |
| ۲۵<br>دقيقې<br>د<br>لوست<br>وړاند<br>يز | – د نوي لوست د عنوان «هجا حرفونو (ا، ب)» له ليکنې څخه وروسته زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي. لوست په مناسب آواز سره لولي، بيا لوست په دوه تنو زده کوونکو لولي او دی خپله د ټولګي او د لوستونکو څارنه کوي.<br>وروسته ښوونکی زده کوونکي خپل ځان ته متوجه کوي او «ب» (با) تلفظ کوي، وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې دغه عمليه تکرار کړي.<br>همدارنګه له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست د کتاب له مخې په آرامۍ سره ولولي بيا دغه حرفونه د تختې پرمخ ليکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې دغه حرف په خپلو کتابچو کې په ښايسته خط وليکي.<br>او بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او حرفونه د تختې پرمخ وليکي. | دوه زده کوونکي لوست د کتاب له مخې لولي.<br><br>څلور زده کوونکي لوست د ښوونکي د غوښتنې مطابق تلفظ کوي.<br>زده کوونکي لوست په دقت او آرامۍ سره لولي. |
| ۱۰<br>دقيقې | **ارزونه:** په لاندې سوالونو سره زده کوونکي ارزول کېږي.<br>۱– څوک ويلی شي چې نن ورځ مو کوم حرفونه ولوستل.<br>۲– څوک ويلي شي چې د نن ورځې سرليک موڅه و؟<br>۳– څوک کولای شي چې د (الف، با) حرفونه صحيح تلفظ کړي؟<br>۴– څوک کولای شي د( الف، با) حرفونه د تختې پر مخ وليکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وايي. |
| ۵<br>دقيقې | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې دغه حرفونه پنځه ځلې په خپلو کتابچوکې وليکي. | |

## دوهم لوست:

## سرلیک: د هجا حرفونه (ت، ث)

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زه کوونکي باید:

- د «ت، ث» حرفونه وپېژني.
- د «ت، ث» حرفونه سم تلفظ کړای شي.
- د هجا حرفونو سم لوستلو ته لیواله شي.

**اړین معلومات:**

– د (ت) مخرج د ژبې طرف دی چې د ژبې څنګونه ثنایا علیا غاښنانو د بیخ او د خولې له پاسنۍ برخــې سره اداء کیږي.

د(ث) مخرج د ژبې سر له ثنایا علیا غاښونو سره لګیږي.

البته ث، س، ص یوله بل سره نژدې مخرجونه لري، لوستونکي باید کوشش وکړي چې د تلاوت په وخت کې هر یو حرف له خپل مخرج څخه تلفظ کړي.

د تدریس په وخت کې حرف(ت، ث) (تا، ثا) تلفظ کیږي.

د تدریس تګ لارې: مطالعه، سوال او ځواب، انفرادي.

مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| د زده کوونکو کړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي باید د ښوونکی خبروته غوږ ونیسي. دوه زده کوونکي باید لوست د تختې له مخې ولولي. زده کوونکي باید د ښوونکي تلفظ ته ښه په دقت او ځیر سره متوجه واوسي. | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، بیا حاضري اخلي او تیر لوست ارزوي، بیا د نوي لوست سرلیک د تختې پر مخ لیکي لکه ت، ث او شاګردان خپلو کتابونو ته متوجه کوي او خپله لوست په مناسب آواز سره لولي، بیا د ت، ث حرفونه په دوه تنو زده کوونکو لولي او خپله یې غلطي نیسي او اصلاح کوي یې. بیا ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو توجه ځان ته جلبوي او د (ت، ث) حرفونه (تا، ثا) تلفظ کوي او په زده کوونکو باندې هم دغه عملیه تکراروي او بیا د تا، ثا حرفونه په آرامۍ سره د کتاب له مخې په ښایسته خط سره د تختې پرمخ لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې نوی لوست په خپلو کتابچوکې په ښایسته خط باندې ولیکي.<br>بیا له څوتنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او تا، ثا حرفونه په تخته ولیکي. | مقدمه ۵ دقیقه<br><br>۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز |
| څلور تنه زده کوونکي باید د ښوونکي په غوښتنه د لوست حرفونه تلفظ کړي. | **ارزونه:** ښاغلی ښوونکی په لاندې پوښتنو سره د زده کوونکو ارزونه کوي.<br>۱- څوک ویلی شي چې نن ورځ موکوم حرفونه ولوستل؟<br>۲- څوک کولی شي چې د تا، ثا حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۳- څوک کولی شي چې د ثا، ثا حرفونه د تختې پرمخ ولیکي؟ | ۱۰ دقیقې |
| زده کوونکي باید لوست په آرامه فضاء کې ولولي. زده کوونکي باید د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ووایي. | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د نن ورځې لوست په خپلو کتابچو کې پنځه وارې ولیکي. | ۵ دقیقې |

**دریم لوست**

**سرلیک: تطبیق**

مخ:

وخت: یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د هجا حرفونه (ث، ب، ا، ت) و پېژني.
- د هجا حرفونه ( ث، ب، ا، ت) صحیح تلفظ کړی شي.
- د (ا، ب، ت، ث) حرفونو له صحیح تلفظ او لوستلو سره مینه پیداکړي.

**اړین معلومات:**

ځینې ماشومان د هجا حرفونه د طوطي په شان لولي په داسي حال کې چې د حرفونو په مینځ کې فرق نشي کولی نو په دې وجه په دغه لوست کې حرفونه نامرتب راوړل شوي دي، ترڅو زده کـــوونکي د تـــورو ترمینځ توپیر وکړای شی او له ناسم لوستو څخه وژغورل شي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، انفرادي، سوال او ځواب.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| د زده کوونکوکړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي باید د ښوونکي لوست ته غوږ ونیسي. | ښاغلی ښوونکی د حال اواحوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي. بیا د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، لکه: څوک کولی شي د تا، ثا حرف صحیح تلفظ کړي؟ | مقدمه ۵ دقیقه |
| درې تنه زده کوونکي باید لوست د کتاب له مخې ولولي. | بیا ښاغلی ښوونکي د نوي لوست سرلیک د تختې پرمخ لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په اوچت او مناسب آواز سره پیل کوي، بیا د (ا، ب، ت، ث) حرفونه د دوو تنو زده کوونکو په واسطه لولي او دی یې غلطي اصلاح کوي. | ۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز |
| زده کوونکي باید د ښوونکي تلفظ ته په دقت سره غوږ ونیسي. | بیا ښاغلی ښوونکی زده کوونکي خپل ځان طرف ته متوجه کوي، بیا دغه څلور غیر مرتب حرفونه چې ث، ا، ت، ب دي د تختې پرمخ لیکي، بیاله شپږو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولکي مخې ته راشي د یو یو حرف په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې دغه حرفونه له کتابونو څخه له خپلو ځانونو سره په ارامه لهجه ولولي. | |
| شپږ تنه زده کوونکي په خپل نوبت سره د ښوونکي په لارښوونه غیر مرتب حرفونه د تختې پرمخ په مرتبه توګه تلفظ کوي؟ | **ارزونه:** ښاغلی ښوونکی په لاندې سوالونو سره د زده کوونکو ارزونه کوي.<br>۱- څوک ویلی شي چې نن ورځ مو کوم حرفونه ولوستل.<br>۲- څوک کولی شي چې ث، ب، ت صحیح تلفظ کړي.<br>۳- څوک کولي شي ث، ب، ت، په مرتبه توګه تلفظ کړي. | ۱۰ دقیقې |
| | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د نن ورځې لوست پنځه وارې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۵ دقیقې |

**څلورم لوست**:

**سرلیک**: **د هجا حرفونه (ج،ح، خ)**

مخ:

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

**موخې:** زده کوونکې باید:

- د هجا حرفونه (ج،ح، خ) و پیژني.
- د هجا حرفونه (ج، ح، خ) په سمه توګه تلفظ کړای شي.
- د هجا حرفونو له صحیح لوستلوسره مینه پیداکړي.

**اړین معلومات:**

- د (ج) مخرج د ژبې مینځ دی. چې د پاس تالو په مینځ کې ځای لري او له شمسي حرفونو څخه دی.
- د (ح) مخرج د حلق مینځ دی او د (حا) حرف د حلقي حرفونو او اظهار څخه دی او د تلفظ په وخت کې باید ورته ډیره توجه وشي چې ها تلفظ نشي.
- د (خ) مخرج د حلق اوله برخه ده چې د ژبې له آخري برخې څخه خارجیږي او د (خا) حرف له حلقي حرفونو او اظهار څخه دی.

او د استعلاء د حرفو څخه هم دی، یعنې ډک لوستل کیږي.

- (ج، ح، خ) حرفونه (جیم، حا، خا) تلفظ کیږي.

**د تدریس تګ لارې:** سوال او ځواب، انفرادي، مطالعه.

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵<br>دقیقه<br><br>۲۵<br>دقیقې<br>دلوست وړاندی | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي. لکه: څوک کولای شي ث، ب، ت صحیح تلفظ کړي، بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک په تخته لیکي او شاګردان خپلو کتابونو ته متوجه کوي او په مناسب آواز سره په لوست پیل کوي، بیا ښاغلی ښوونکی ج، ح، خ په څوتنو زده کوونکو لولي او غلطي یې اصلاح کوي، بیا ښاغلی ښوونکی زده کوونکي خپل ځان ته متوجه کوي او بیا ورته جیم، حا، خا تلفظ کوي، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې همدغه لوست د خپلو ځانونو سره په آرامه لهجه ولولي همدارنګه ورته لارښوونه کوي چې همدغه حرفونه په خپلو کتابچو کې ولیکي، او بیا له یو تن زده کوونکي څخه غواړي چې همدغه حرفونه د تختې له مخې ولولي او بل تن یې د تختې پرمخ ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږنیسي.<br><br>زده کوونکي لوست د کتاب له مخې لولي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي تلفظ ته ښه په دقت ګوري. |
| ۱۰<br>دقیقې | **ارزونه:** په لاندې سوالونو سره ښوونکی د زده کوونکو ارزونه کوي.<br>۱- څوک کولای شي د جیم، حا، خا، حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۲- څوک کولای شي چې وواییي نن موکوم حرفونه ولوستل؟<br>۳- څوک کولای شي چې (ج، ح، خ) حرفونه د تختې پرمخ ولیکي؟ | زده کوونکي لوست ښه په دقت او آرامۍ سره لولي. |
| ۵<br>دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې نننی لوست په خپلو کتابچو کې په ښایسته خط ولیکي. | ښاغلی ښوونکی چې له زده کوونکو څخه کوم فعالیت او کړنې غواړي په ښه طریقه یې اجراء کوي او هم یې پوښتنو ته ځواب ورکوي. |

**پنځم لوست:**

**سرلیک: (د، ذ) حرفونه**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د هجا حرفونه (د، ذ) وپیژني.
- وکولای شي د هجا حرفونه (د، ذ) سم تلفظ کړای شي.
- د هجا د حرفونو له صحیح لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

د دال (د) مخرج د ژبې سر چې د ثنایا علیا له غاښونو سره لګیږي، د خولې له مینځ څخه ادا کیږي، دا ل حرف د پنځو قلقلي حرفونو څخه هم دی.

– د (ذ) مخرج د ژبې سر د ثنایا علیا غاښونو له سر سره لګیږي او د(ذ)حرف د تلفظ په وخت کې بایــد ډیر دقت وشي چې د (ذال) په ځای «زا» تلفظ نشي.

– (د) (ذ) حرفونه (دال، ذال) تلفظ کیږي.

**د تدریس تک لارې:** سوال او ځواب، مطالعه، انفرادی.

**مرستندویه توکي:** کتاب، تخته، تباشیر، کتابچه او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵<br>دقیقه | ښاغلی ښوونکی د حال او احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، لکه:<br>څوک کولای شي چې د (ح، خ، ج ) حرفونه د تختې پرمخ ولیکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۲۵<br>دقیقې<br>دلوست<br>وړاندیز | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک د تختې برمخ لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په مناسب آواز سره پیل کوي، بیا د (د،ذ) حرفونه به دوه تنو زده کوونکو لولي، غلطۍ اوتېروتنې یې اصلاح او حل کوي، بیا ښاغلی ښوونکی زده کوونکي خپل ځان ته متوجه کوي، (د، ذ) ورته تلفظ کوي او له زده کوونکو څخه غواړي چې دال، ذال د خپلو ځانونو سره د کتابونو له مخې ولولي، بیا زده کوونکو ته دنده ورکوي چې همدغه حرفونه له خپلو کتابونو څخه په کتابچو کې ولیکي، بیا له دوه تنو زده کوونکو څخه غواړي چې یو یې د (دال، ذال) حرفونه د کتاب له مخې ولولي او بل ته دنده ورکوي چې همدغه حرفونه د تختې پرمخ ولیکي. | زده کوونکي د کتاب له مخې لوست لولي او د ښوونکي تلفظ ته توجه کوي.<br><br>زده کوونکي لوست ښه په ځیرکتیا سره لولي. |
| ۱۰<br>دقیقې | **ارزونه:**<br>۱– څوک کولای شي چې (د، ذ) حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۲– څوک ویلی شي چې نن مو کوم حرفونه ولوستل؟<br>۳– څوک کولای شي چې د ( دال، ذال) حرفونه په تخته ولیکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| ۵<br>دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته دنده ورکوي چې نننی لوست په خپلو کتابچو کې درې ځلې ولیکي. | |

## شپږم لوست
## سرلیک: د هجا حرفونه (ر، ز)

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د (ر، ز) حرفونه وپېژني.
- د (ر، ز) په حرفونو تلفظ وکولای شي
- د (ر، ز) حرفونو د صحیح تلفظ سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

د «ر» مخرج د ژبې سر او د ژبې شاخوا ته مایل د اوری او پاسني تالو سره (د ثنایا علیا غاښونو په برابری) اداء کېږي، خو چې د خولې له بام سره ونه چسپیږي.

- تفخیم: ډک لوستلو ته وایي یا په بل عبارت ډکې خولې لوستلو ته وایي.
- ترقیق: په لغت کې تخفیف ته وایي او په اصطلاح کې باریک لوستلو ته وایي یعنې د اداء په وخت کې حرفونه باریک او ضعیف وي او خوله نه ډکوي.
- باید وپوهېږو چې حرف(ر) درې حالتونه لري ۱– تفخیم ۲– ترقیق ۳– ترقیق او تفخیم یعنې دواړه حالتونه هم جواز لري.

**د تفخیم سببونه**

۱– کله چې (ر) حرف د کلمې په اول یا آخر او یا په مینځ کې مفتوحه یا مضمومه راغلې وي لکه رُمان – عَرفات.

۲– یا په هغه صورت کې چې (ر) حرف ساکن او مخکې حرف ورڅخه مضموم او یا مفتوح وي لکه القرآن، البرق.

۳– په هغه صور کې چې (ر) د غیر لازم متصل یا منفصل عارضي کسرې پسې واقع شي لکه ام ار تابوا– ارجعوا.

۴– کله چې د (ر) حرف د استعلاء د حرفونو څخه وروسته په یوه کلمه کې واقع شي لکه(قرطاس، مرصاد)

۵– په هغه صورت کې چې کسره او حرف(ر) په یوه کلمه کې راشي لکه (رب ارجعون)

**د ترقیق اسباب:**

۱– کله چې د (ر) حرف مکسور وي دغه کسره اصلي وي او که عارضي. د اصلي کسرې مثال لکه (رجالُ، رضوانُ)

د عارضی کسرې مثال: و انذر الناس.

**۲-** همدارنګه د (ر) حرف باریک لوستل کیږي په هغه وخت کې چې د استعلاء حرف په یوه کلمه کې او د(ر) حرف په بله کلمه کې راغلی وي، لکه ولا تصعرخدک، فاصبر صبراً جمیلاً. یا په هغه وخت کې چې له کسرې څخه وروسته ساکنه یا راغلې وي لکه (منذر، خبیر، نذیر)

**د ترقیق او تفخیم اسباب او د دواړو حالتونو روا والی:**

**۱-** په هغه وخت کې چې د استعلاء حرف له مکسوره (ر) څخه وروسته په یوه کلمه کې جمع شي، لکه: (کل فرق) که استعلاء حرف ته وګورو، مفخم لوستل کیږي او که کسرې ته اعتبار ورکړو، مرقق لوستل کیږي.

**۲-** کله چې د (ص) او (ط) ساکن حرفونه د فاصل حد په توګه د (ر) او کسرې ترمنځ واقع شي، په دې صورت کې تفخیم او ترقیق دواړه جواز لري، لکه: (مصر، قطر) خو غوره داده چې په مصـــر کـــې د (ر) کلمه مفخمه او په قطر کې د (ر) کلمه مرقق ولوستل شي.

**۳-** د (ز) مخرج کله چې د ژبې سر د ثنای سفلی شاته په داسې اندازه کې چې د ژبې سر په غاښونو ونه لګیږي او دغه فاصله په «ز» حرف کې ډېره کمه ده. «ر» او «ز» را او زا تلفظ کیږي.

**د تدریس لارې:** انفرادي، سوال او ځواب او مطالعه.

**مرستندویه توکي:** تخته، تباشیر، او کتابچه.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| **مقدمه ۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی د حال او احوال او پوښتنې څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي. لکه: څوک کولای شي چې دال ذال حرفونه صحیح تفلظ کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي خبروته غوږ نیسي. |
| **۲۵ دقیقې د لوست وړاندیز** | بیا د نوي لوست سرلیک د تختې پرمخ لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په مناسب آواز سره پیل کوي. بیا لوست پر دوه تنو زده کوونکو باندې لولي، غلطي او تېروتنې يې ورته اصلاح کوي.<br>بیا زده کوونکي خپل ځان ته متوجه کوي څو (ر، ز) حرفونه د خپلو کتابونو له مخې په آرامۍ سره ولولي بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د(را، زا) حرفونه په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دغه حرفونه د تختې پرمخ لیکي او له یو څو تنو څخه غواړي چې دغه حرف د تختې له مخې ولولي او پر تخته يې ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي تلفظ ته په دقت سره ګوري او فکر ورته کوي.<br><br>زده کوونکي لوست په آرامۍ سره لولي.<br><br>زده کوونکي لوست د تختې له مخې لولي او په خپلو کتابچو کې يې لیکي. |
| **۱۰ دقیقې** | **ارزونه:** ښاغلی ښوونکی په لاندې پوښتنو سره د زده کوونکو ارزونه کوي:<br>۱- څوک کولای شي د (را، زا) حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۲- څوک ویلی شي چې نن موکوم حرفونه ولوستل؟<br>۳- څوک کولای شي د را، زا حرفونه په تخته ولیکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ښه په احترام سره ځواب ورکوي. |
| **۵ دقیقې** | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې نننی لوست څوځلې په کورونو کې په کتابچو کې ولیکي. | |

## اووم لوست

## سرلیک: د هجا حرفونه (س، ش)

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

- د هجا حرفونه وپېژني
- د هجا په حرفونو تلفظ وکولای شي
- د هجا د حرفونو د صحيح لوستلو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات**

د (س) مخرج د ژبې سر او د ثنای سفلي شا ته کله چې لږ لرېوالی د ژبې د سر او غاښونو ترمينځ وليدل شي په دغه فاصله کې سين تلفظ کيږي او دا فاصله د سين په حرف کې د (ز) په پرتله لږ زياته وي.
د(ش) مخرج د ژبې مينځ دی چې د پاس تالو په مينځ کې قرار لري په دغه وخت کې شين(ش) تلفظ کيږي او دغه حرف ته شمشي حرف هم وايي، د (س) او(ش) حرفونه سين او شين تلفظ کيږي، د تلفظ په وخت کې بايد ډيره پاملرنه وشي چې (س) د (صاد او ثا) په شان تلفظ نشي.

**د تدريس لارې:** سوال او ځواب، انفرادي، مطالعه.
**مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| د زده کوونکو کړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي د ښوونکي خبروته غوږ نیسي. | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي. لکه: څوک کولای شي چې را، زا صحیح تلفظ کړي؟ | مقدمه ۵ دقیقه |
| زده کوونکي لوست د تختې له مخې لولي<br><br>زده کوونکي د ښوونکي تلفظ ته په دقت نظر سره ګوري. | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکي خپل ځان ته متوجه کوي او لوست په مناسب آواز سره پیل کوي، بیا لوست په دوو تنو زده کوونکو لولي، غلطي او تېروتنې ورته اصلاح کوي، بیا ښاغلی ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د (س، ش) حرفونه له خپلو ځانونو سره په ټیټ آواز سره تکرار کړي چې د څنګ ملګري یې ورڅخه ګټه واخلي. همدا رنګه زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز |
| زده کوونکي خپلو ځانونو سره لوست په دقت او آرامۍ سره لولي. | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره د زده کوونکو ارزونه کوي:<br>۱- څوک کولای شي چې د (س–ش) حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۲- څوک ویلی شي چې نن مو کوم حرفونه ولوستل؟<br>۳- څوک کولای شي چې د «س، ش» حرفونه پر تخته ولیکي؟ | ۱۰ دقیقې |
| زده کوونکي باید د ښوونکي پوښتنو ته په احترام سره ځوابونه ووایي. | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په خپلو کورونو کې په کتابچو کې ولیکي. | ۵ دقیقې |

## اتم لوست

## سرليک: تطبیق

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د (س، ج، د، ح، خ، ش، ر، ذ، ز) حرفونه وپېژني.
- د (س، د، ح، خ، ش، ر، ز، ذ حرفونه صحیح تلفظ کړای شي.
- د س، ج، د، خ، ش، ر، ز، ذ) حرفونو د صحیح لوستلو سره مینه پیداکړي.

**اړین معلومات:**

**ځنې ماشومان د هجا حرفونه د طوطي په شان لولي، خو د حرفونو ترمینځ توپیر نشي کولي په دغه لوست کې د حرفونو تطبیق س، ج، ش، د، ح، خ، ز، ذ، ر، د، ز غیر مرتب راغلي دي، څو زده کوونکي يې ترمینځ توپیر وکړای شي.**

| د زده کوونکو کړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال اخیستلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، لکه: څوک د س– ش حرفونه صحیح تلفظ کولی شي؟ | مقدمه ۵ دقیقه |
| درې تنه زده کوونکي لوست د کتاب له مخې لولي. زده کوونکی د ښوونکي تلفظ ته ښه په ځیر نظر ګوري. زده کوونکي لوست په دقت او آرامی سره لولي. | بیا د نوي لوست سرلیک «د حرفونو تطبیق» په تخته لیکي (س، ج، د، ح، ش، ر، ز، ذ) او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي اوهم لوست په مناسب آواز سره پیل کوي، بیا د لوست غیر مرتب حرفونو تطبیق د دریوو زده کوونکو په واسطه لولي، غلطي ورته اصلاح کوي. بیا ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو توجه خپل ځان ته را اړوي. بیا دغه نا مرتب حرفونه (ر، س، ش، ج، د، ح، خ، ذ، ز) د تختې پرمخ لیکي بیا له نهو (۹) زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل نوبت د ټولګي مخې ته راشي، یو یو حرف ولولي او وې لیکي. ددغې کړنې په وجه نور زده کوونکي هم لوست ته تشویق کیږي او غلطي ورته په ډېر احترام او مهرباني سره اصلاح کوي. تکرار: له زده کوونکو څخه غواړي چې غیر مرتب حرفونه (س، ج، د، ز، ذ، ر، ش) له خپلو ځانونو سره په آرامه لهجه سره ولولي او هم یې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز |
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وايي. | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي:<br>۱– څوک ویلي شي چې نن ورځ مو کوم حرفونه ولوستل؟<br>۲– څوک دغه حرفونه صحیح تلفظ کولی شي؟<br>۳– څوک د دغه لوست درې حرفونه مرتب کولی شي؟ | ۱۰ دقیقې |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د نني لوست توري یوځل په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۵ دقیقې |

## نهم لوست

## سرلیک: د (ص - ض) حرفونه

مخ:

وخت: یو درسي ساعت۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د ص– ض حرفونه و پېژني
- ص –ض ښه تلفظ کړای شي
- د ص– ض حرفونو ښه تلفظ کولو ته لیواله شي.

**اړین معلومات:**

د (ص) مخرج کله چې د ژبې سر د ثنایا سفلی غاښونو شاته په لږ فاصلې سره صورت ونیسي د «ص» حرف اداکیږي.

(ص– س – ز) یوګډ مخرج لري صرف «ص» د اطباق صفت په وجه ډک لوستل کیږي.

د (ض) مخرج له ژبې سره متصل دی چې کله د ژبې ښي یا چپ اړخ او د آسیاب غاښونو له سر څخه اداکیږي، صفت یې ډک لوستل دي.

د (ض) حرف ادا کول له چپ طرف څخه آسان دی او ډیر هم استعمالیږي او له ښي طرف څخه مشکل او ډیر کم استعمال شوی دی. یوائې رسول الله صلی الله علیه وسلم و چې په ډیر فصاحت سره یې د (ض) حرف له دواړو طرفونو څخه ادا کاوه.

همدارنګه د تلفظ په وخت کې باید توجه وشي، څو د (س) حرف د (صاد) او (ثاء) په څیر تلفظ شي.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵ دقیقه | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال اخیستلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست ارزونه کوي، لکه: څوک کولای شي د تیر لوست څلور حرفونه صحیح تلفظ کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۲۵<br>دقیقې<br>دلوست<br>وړاندیز | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي، زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي لوست په مناسب آواز سره پیل کوي، بیا ښاغلی ښوونکی زده کوونکي خپل تلفظ ته متوجه کوي او ورته وایي چې د (ثا–س–ص) د حرفو په تلفظ کې فرق شته، بیا همدغه حرفونه پر زده کوونکو باندې تلفظ کوي او غلطي ورته اصلاح کوي او بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په دوو دوو نفرو په چوپه خوله له خپلو ځانونو سره مطالعه کړي، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست حرفونه ص–ض له خپل ځان سره تکرار کړي او په داسې شکل سره چې د څنګ ملګري یې واوري، بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست حرفونه په خپلو کتابچوکې ولیکي، بیا ښوونکی د لوست حرفونه پر تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل نوبت سره یو یو حرف نورو ته ولولي او همدغه حرف د تختې پرمخ ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي تلفظ ته ښه په دقت ګوري.<br><br>زده کوونکي لوست د تختې له مخې لولي. |
| ۱۰<br>دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې سوالونو سره د زده کوونکو ارزونه کوي:<br>۱– څوک کولای شي د لوست حرفونه ص– ض صحیح تلفظ وکړي؟<br>۲– څوک ویلی شي چې نن موکوم حرفونه ولوستل؟<br>۳– څوک کولای شي چې د نن ورځې لوست پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته په احترام سره ځواب وایي. |
| ۵<br>دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د نن ورځې لوست په خپلو کتابچوکې ولیکي. | |

**لسم لوست:**

## **سرلیک: د (ط، ظ) حرفونه**

**پانه:**

وخت: یو درسي ساعت (**۴۵** دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د ( ط،ظ ) حرفونه وپېژني.
- د (ط، ظ) حرفونه صحیح تلفظ کړي.
- د ط، ظ حرفونو د صحیح تلفظ کولو سره اړیکې ولري.

**اړین معلومات:**

**د (ط) حرف مخرج د ژبې طرف دی چې د ژبې اړخونه د ثنایا علیا غاښونو له بیخ سره یو ځای شي، د (ط) آواز اوریدل کیږي.**

**– د (ظ) مخرج د ژبې سر او د ثنایا علیا سر دی، د (ظ) حرف د اطباق او استعلاء صفات لري، باید د تلفظ په وخت کې د دواړو لحاظ وساتل شي.**

**– د ط– ظ حرفونه طا– ظا تلفظ کیږي او ډیر کوشش باید وشي چې طا– تا او ظا– زا تلفظ نشي.**

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| **مقدمه ۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست ارزونه کوي، د مثال په توګه: څوک کولای شي چې ص– ض صحیح تلفظ کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي. |
| **۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز** | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک د تختې پرمخ لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي، بیا لوست په مناسب آواز سره پیل کوي، بیا د زده کوونکو تلفظ ته متوجه کیږي، د طا او تا په مینځ کې فرق ورته کوي. بیا همدغه حرفونه په دوو تنو زده کوونکو باندې لولي او غلطي یې ورته اصلاح کوي، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست له خپلو ځانونو سره مطالعه او تکرار کړي او همدارنګه زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې ذکر شوي حرفونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي لوست د کتاب له مخې لولي.<br>زده کوونکي د تکرار ښوونکي لوست ته ښه متوجه وي. |
| | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره د زده کوونکو ارزونه کوي:<br>۱– څوک کولای شي چې د طا – ظا حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۲– څوک ویلی شي چې نن مو کوم حرفونه ولوستلول؟<br>۳– څوک د نن ورځې لوست پر تختې لیکلی شي؟ | زده کوونکي له خپلو ځانونو سره لوست په چوپه خوله مطالعه کوي. |
| **۱۰ دقیقې** | **کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د ننني ورځې لوست درې ځله په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي لوست د تختې له مخې لولي او بیا یې لیکي. |
| **۵ دقیقې** | | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |

**یوولسم لوست:**

## **سرلیک: د (ع- غ) حرفونه**

صفحه:

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د ( ع– غ) حرفونه وپیژني
- د (ع –غ) حرفونه صحیح تلفظ کړي.
- د (ع–غ) حرفونو له صحیح تلفظ سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

– د (ع) حرف مخرج د حلق مینځ دی او د ( ح) حرف هم عین مخرج لري او د (غ) او(خا) مخرج حلق ته نژدې د ژبې بیخ دی، داهم باید وویل شي چې حلق د طعام خوړلو او د اوبو څکلو د تیرېدو ځای دی او د خولې په پای کې موقعیت لري، شپږ ګوني حرفونه چې په حلق کې اداء کېږي، حلقي حرفونه ورته وایي د (ع،غ) حرفونه عین او غین تلفظ کیږي او د (ع) په تلفظ کې باید ډیر کوشش وشي چې د (ء) عوض نشي.

| د زده کوونکو کړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
| --- | --- | --- |
| زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي تلفظ ته ښه په دقت ګوري.<br><br>زده کوونکي لوست د تختې له مخې لولي. | ښاغلی ښوونکی د حال او احوال له پوښتنې څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست ارزونه کوي، لکه: څوک کولای شي چې طا، ظا صحیح تلفظ کړي؟<br>بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجې کوي، بیا لوست په مناسب اواز سره پیل کوي.<br>بیا زده کوونکي د حرفونو تلفظ ته متوجه کوي او ورته وايي چې (ع) (غ) په حلق کې تلفظ کیږي.<br>بیا د لوست حرفونه (ع–غ) په دوو تنو زده کوونکو چې په اخیر د ټولګي کې ناست وي لولي غلطي ورته اصلاح کوي او هم له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او هم له زده کووکو څخه غواړي چې د ع – غ حرفونه له خپلو ځانونو سره تکرار کړي او همدارنګه زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست حرفونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او کوم حرفونه چې پر تخته لیکل شوي، نورو ته ولولي. | مقدمه ۵ دقیقه<br><br>۲۵ دقیقې د لوست وړاندیز |
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته په احترام سره ځواب وايي. | **ارزونه:** زده کوونکي باید په لاندې پوښتنو سره وارزول شي:<br>۱– څوک کولای شي چې د ع –غ حرفونه تلفظ کړي؟<br>۲– څوک ویلی شي چې نن مو کوم حرفونه ولوستل؟<br>۳– څوک کولای شي چې د نن لوست حرفونه پر تخته ولیکي؟<br><br>**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست حرفونه په کتابچو کې ولیکي. | ۱۰ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |

**دولسم لوست**:

**سرلیک**: **تطبیق**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- دغه لوست وپېژني
- د دغه لوست حرفونه صحیح تلفظ کړای شي
- د لوست صحیح لوستلو ته لیواله شي.

**اړین معلومات:**

ځینې ما شومان د هجا حرفونه د طوطي په شان لولي او د حرفونو په مینځ کې فرق نشي کولی،له دې وجې نه په دې لوست کې غیر مرتب حرفونه راوړل شوي دي، ترڅو زده کوونکي یې ترمینځ توپیر وکړای شي او له ناسم لوستلو څخه وژغورل شي.

| د زده کوونکو کړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
| --- | --- | --- |
| زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>درې تنه زده کوونکي لوست د تختې له مخې لولي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي تلفظ ته ښه توجه کوي.<br>زده کوونکي د ښوونکي په لارښوونه لوست د تختې له مخې لولي او لیکي یې. | ښاغلی ښوونکی له حال احوال څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست ارزونه کوي. لکه څوک کولای شي (ع- غ- حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي، بیا لوست په مناسب آواز سره پیل کوي، بیا پنځه غیر مرتب حرفونه په دوو تنو زده کوونکو لولي او غلطي ورته اصلاح کوي، بیا د زده کوونکو توجه خپل ځان ته را اړوي بیا دغه پنځه غیر مرتب حرفونه د تختې پرمخ لیکي، بیا درې درې زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او دغه غیر مرتب حرفونه ورباندې لولي او غلطي ورته اصلاح کوي، بیا ښاغلی ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې نا مرتب حرفونه له خپلو ځانونو سره په چوپه خوله ولولي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | مقدمه<br>۵ دقیقه<br><br>۲۵<br>دقیقې<br>دلوست<br>وړاندیز |
| | **ارزونه:** په لاندې پوښتنو سره باید د زده کوونکو ارزونه وشي.<br>۱- څوک ویلی شي چې نن ورځ موکوم حرفونه ولوستل؟<br>۲- څوک کولای شي دغه حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۳- څوک کولای شي د دغه لوست حرفونه مرتب کړي؟ | ۱۰<br>دقیقې |
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو دنده ورکوي چې د ننۍ ورځې لوست په خپلو کتابچو کې یوځل ولیکي. | ۵<br>دقیقې |

**دیارلسم لوست**:

## **سرلیک**: **د (ف- ق- ک) حرفونه**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د (ف– ق– ک ) حرفونه وپیژني.
- د (ف– ق– ک ) حرفونو صحیح تلفظ وکړي.
- د دغو حروفو صحیح لوستلو ته لیواله شي.

**اړین معلومات:**

د (ف) مخرج په لاندې شونډه او ثنایا علیا غاښونو ته متصل شتون لري، لکه: (أف).

د (ق) مخرج د ژبې په پای کې د حلق په لوري د پاسني تالو لوري ته شتون لري.

د (ک) مخرج د (ق) حرف د مخرج په وروستۍ برخه کې خولې ته نژدې ځای لري او د (ق) مخرج د (ک) په پرتله حلق ته نژدې ځای لري. او (ک) مخرج د قاف په پرتله خولې ته نژدې ځای لري.

د (ق) او (ک) تورو ته لهوي توري وايي چې د ستوني لهات ته منسوب دي– لهات یوه ټوټه غوښه ده د ژبې په پای کې چې هغه ته زبانچه یا وړه ژبه هم ویل کېږي.

(ف، ق، ک) حرفونه باید تجویدي تلفظ شي یعنې د (ق) او ک حرفونو ترمینځ باید توپیر وشي.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| **مقدمه ۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او بیا د تیر لوست ارزونه کوي، لکه: څوک کولای شي د تیر لوست نامرتب حرفونه مرتب کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| **۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز** | بیا د نوی لوست سرلیک د تختې پرمخ لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجې کوي، بیا لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. بیا د (ف، ق، ک) حرفونه په دوو زده کوونکو باندې لولي او غلطي ورته اصلاح کوي. بیا ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو توجه خپل ځان ته را اړوي او د دغه لوست نوي حرفونه په تجوید سره لولي. | زده کوونکي لوست په سوچ او فکر سره لولي او لیکي یې. |
| | **تکرار:** بیاله زده کوونکو څخه غواړي چې د( ف– ق– ک) له حرفونه خپلو کتابونو څخه په چوپه خوله ولولي او هم زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې همدغه حرفونه په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې یو زده کوونکی د کتاب له مخې حرف ولولي او بل تن یې پر تخته ولیکي. | زده کوونکي فعالیت په ښه شان سرته رسوي. |
| **۱۰ دقیقې** | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې سوالونو سره د زده کوونکو ارزونه کوي:<br>۱– څوک کولای شي د ف– ق– ک حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۲– څوک ویلي شي چې نن ورځ مو کوم حرفونه ولوستل؟<br>۳– څوک ویلي شي چې د (ق) حرف څو نقطي لري؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته په احترام سره ځواب وایي. |
| **۵ دقیقې** | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي، چې د نننۍ ورځې لوست په خپلو کتابچو کې درې ځلې ولیکي. | |

**څوارلسم لوست:**

**سرليک: - ل- م- ن -**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې

موخې: زده کووونکي بايد:

- ( ل– م– ن ) حرفونه وپېژني.
- د ( ل– م– ن ) حرفونو صحيح تلفظ وکړای شي.
- د ( ل– م– ن ) حرفونو له صحيح تلفظ سره آشنا شي.

**اړين معلومات:**

د (ل) مخرج د ژبې اړخ دی چې د (ض حرف د مخرج له پای څخه د ژبې تر سره په پاسنې بيره او تالو کې اداء کيږي په داسې توګه چې د ضواحکو، آسيابو، رباعياتو او ثنايا علياوو د دوو طرفونو په برابرۍ صورت ونيسي.

د (م) مخرج د دواړو شونډو په بيرونۍ برخه کې دی، کله چې دواړه وچسپيږي او هوا د شونډو او خيشوم په ساحه کې بنده شي لکه (أم).

د (ن) مخرج د ژبې له اړخ څخه د ژبې تر سره پورې په بيره او پاسني کام کې په داسې توګه ځای لري، چې د رباعياتو او ثنايا علياوو دواړو طرفوته واقع شي.

دغه دواړه حرفونه د مخرج په اعتبار سره حلقي حرفونو ته نژدې دي.

| د زده کوونکو کړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسی. | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست ارزونه کوي، لکه: څوک کولای شي د ف، ق، ک حرفونه پر تخته ولیکي؟ | **مقدمه ۵ دقیقه** |
| زده کوونکي لوست په چوپه خوله لولي او لیکي یې. | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي، بیا لوست په مناسب آواز سره پیل کوي، بیا د (ل– م– ن) حرفونه په دوو زده کوونکو لولي او ښوونکي غلطۍ ورته اصلاح کوي او د زده کوونکو توجه خپل ځان ته را اړوي، څو د لوست حرفونه په تجوید سره ولولي. | **۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز** |
| زده کوونکی فعالیت په ښه ډول سرته رسوي. | **تکرار:** بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپه خوله له خپلو ځانونو سره مطالعه کړي او هم زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست حرفونه په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دوه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي، یو تن د تختې له مخې د لوست حروف لیکي او بل تن یې د تختې له مخې لولي. | |
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام ځواب وایي | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي:<br>۱– څوک کولای شي د (ل– م– ن ) حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۲– څوک کولای شي د (ل، م، ن ) حرفونه پر تخته ولیکي؟<br>۳– څوک ویلی شي چې نن ورځ مو کوم حرفونه ولوستل؟ | **۱۰ دقیقې** |
| | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکوته لارښوونه کوي چې د لوست حرفونه په خپلو کتابچو کې درې ځله ولیکي. | **۵ دقیقې** |

**پنځه لسم لوست:**

**سرلیک: ( و، هـ ) حرفونه**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- (و، هــ) حرفونه وپیژني.
- و، هــ حرفونه صحیح تلفظ کړي.
- د و، هــ حرفونو د صحیح لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

(و) له جوفي حرفونو څخه دی چې د یو متحرک حرف په واسطه د خولې له هوا څخه پیدا کیږي، لکه: واو ساکن ماقبل یې مضموم وي او د (ها) حرف له حلقي حرفونو څخه دی مخرج یې د حلق آخر دی. دغه دوه حرفونه د مخرج له مخې حلقي حرفونو ته نژدې دي.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| **مقدمه<br>۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي لکه: څوک کولای شي (ل، م، ن) حرفونه پر تخته ولیکي، | زده کوونکي دښوونکي پوښتنوته سم ځواب وايي. |
| **۲۵<br>دقیقې<br>دلوست<br>وړاندیز** | بیا زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي، بیا د لوست حرفونه په تجوید سره تلفظ کوي بیا د ( و، ه) حرفونه په دوو زده کوونکو باندې لولي، غلطي ورته اصلاح کوي.<br>تکرار: له زده کوونکو څخه غواړي چې د ( و– ه) حرفونه د کتاب له مخې له خپلو ځانونو سره په چوپه خوله مطالعه کړي او هم له زده کوونکو څخه غواړي چې همدغه حرفونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. بیا له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي یو تن د تختې له مخې حرف ولولي اوبل تن يې پر تخته ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>دوه تنه زده کوونکي د لوست فعالیت سرته رسوي او نور زده کوونکي ورته توجه کوي.<br>زده کوونکي لوست په چوپه خوله لولي او لیکي يې. |
| **۱۰<br>دقیقې<br>۵<br>دقیقې** | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره د زده کوونکو ارزونه کوي:<br>۱– څوک کولاشي د (و، ه) حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۲– څوک ویلی شي چې نن مو کوم حرفونه ولوستل؟<br>۳– څوک کولای شي د (و، ه) حرفونه په تخته ولیکي؟<br>**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د نن ورځې لوست په خپلو کتابچو کې څلور ځله ولیکي. | زده کوونکي فعالیت په سمه توګه سرته رسوي.<br>زه کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام سره ځواب وايي. |

**شپاړلسم لوست:**

## **سرليک: ( ء، ی) حرفونه**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

- د ( ء، ی) حرفونه وپېژني
- د ( ء، ی) حرفونه صحيح تلفظ کړای شي.
- د د غو حرفونو له صحيح لوستلو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات:**

(ء) له حلقي حرفونو څخه ده د (ها) په شان د حلق پای يې مخرج دی.

(ها) د حلقي حرفونو څخه ده چې مخرج يې د حلق پای دی.

(ی) له جوفي حرفونو څخه ده، معلوم مخرج نلري، د متحرک حرف په واسطه چې د خولې له هوا څخه پيدا کيږي له هغې ساکنې ياء څخه عبارت ده چې ما قبل يې مکسور وي.

| د زده کوونکو کړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام سره ځواب وايي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نيسي.<br><br>زده کوونکي د لوست فعاليت سرته رسوي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست په چوپه خوله لولي او هغه ليکي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام سره ځواب وايي. | ښاغلی ښوونکي له حال او احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تير شوي لوست ارزونه کوي.<br>بيا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرليک پر تخته ليکي او پر زده کوونکو باندې يې لولي، غلطي ورته اصلاح کوي، بيا د زده کوونکو توجه ځان ته را اړوي، د لوست حرفونه په تجويد سره لولي.<br>**تکرار:** زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست حرفونه له خپلو ځانونو سره په ټيټه خوله ولولي او هم ورته لارښوونه کوي چې د لوست حرفونه په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>بيا له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي يو تن لوست د کتاب له مخې لولي او بل يې پر تخته ليکي.<br><br>**ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي:<br>۱- څوک کولای شي (ع، ی) حرفونه صحيح تلفظ کړي؟<br>۲- څوک ويلی شي ووايي چې نن مو کوم حرفونه ولوستل؟<br>۳- څوک کولای شي (ع، ی) حرفونه پر تخته وليکي؟<br><br>**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د نن ورځې لوست څلور ځله په خپلو کتابچو کې وليکي. | **مقدمه ۵ دقيقه**<br><br>**۲۵ دقيقې دلوست وړانديز**<br><br>**۱۰ دقيقې**<br><br>**۵ دقيقې** |

**اوو لسم لوست**:

## **سرليک**: **تطبيق**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (**۴۵** دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

- د هجا حرفونه وپيژني
- د (ق، ی، ک، ل، ن، هــ، ف) حرفونه صحيح تلفظ کړي.
- د پورته حرفونو له صحيح لوستلو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات:**

يو شمير ماشومان د هجاء حرفونه د طوطي په شان لولي، خو د حرفونو ترمينځ فرق او توپير نشي کولای، له دې امله مو حرفونه په غير مرتبه بڼه راوړي دي، ترڅو زده کوونکي يې ترمينځ توپير وکړای شي او له ناسم لوستلو څخه وژغورل شي.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| **مقدمه ۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی له حال او احوال څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله د زده کوونکو ارزونه کوي. لکه څوک کولای شي د ( و– هـــ) حرفونه پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| **۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز** | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي. لوست په مناسب اواز سره پیل کوي او بیا غیر مرتب حرفونه په دوو زده کوونکو لولي، غلطي ورته اصلاح کوي او د زده کوونکو توجه خپل ځان ته را اړوي او غیر مرتب حرفونه پر تخته لیکي بیا له دریوو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل نوبت سره د ټولګي مخې ته راشي او دوه دوه حرفونه ولولي او ویې لیکي.<br><br>**تکرار:** له زده کوونکو څخه غواړي چې نا مرتب حرفونه د کتاب له مخې له خپلو ځانونو سره ولولي او بیا یې په خپلو کتابچوکې ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>دوه زده کوونکي د لوست فعالیت سرته رسوي.<br><br>زده کوونکي لوست په ارامۍ او چوپه خوله لولي او لیکي یې. |
| **۱۰ دقیقې** | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي:<br>۱– څوک ویلی شي چې نن ورځ مو کوم حرفونه ولوستل؟<br>۲– څوک کولای شي د دغه لوست حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۳– څوک کولای شي چې نامرتب حرفونه ترتیب کړي؟ | |
| **۵ دقیقې** | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په خپلو کتابچو کې څلور ځله ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام ځواب وایي. |

**اتلسم لوست**:

## **سرلیک**: **د هجا حرفونه**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د هجا حرفونه وپېژني.
- د هجا پر ټول حرفونه صحیح تلفظ کړای شي.
- د هجا حرفونو له سم لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

د هجا حرفونه اته ویشت (۲۸) دي، هر یو یې خپل مخرج او ځانګړي صفتونه لري، چې د خپل مخرج او صفتونو په وجه له یو او بل سره توپیر لري، په ځانګړي ډول هغه حرفونه چې مخرجونه یې سره نژدې دي. لکه (ت) (ط) ز، (ظ) (س، ص، ث) ( ء، ع، ح، ه ).

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| **مقدمه ۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له معلومولو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي لکه: څوک ویلی شي چې په تیر شوي لوست کې مو کوم حرفونه ولوستل. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| **۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز** | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. بیا د ء، ی حرفونه پر څلورو زده کوونکو باندې لولي غلطي یې ورته اصلاح کوي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي . دوه زده کوونکي د لوست فعالیت سرته رسوي، نور ورته پاملرنه کوي. |
| | بیا ښاغلی ښوونکي د زده کوونکو پام خپل ځان طرف ته را اړوي او د لوست حرفونه په تجوید سره تلفظ کوي. تکرار: ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست حرفونه له اول نه تر پایه پورې له خپلو ځانونو سره په چوپه خوله ولولي او هم ورته لارښوونه کوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | زده کوونکي لوست په چوپه خوله لولي. |
| **۱۰ دقیقې** | بیا له څوار لسو زده کوونکو څخه غواړي چې په نوبت سره د ټولګي مخې ته راشي، دوه دوه حرفونه په تخته ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي لارښوونه په ښه شان عملي کوي. |
| **۵ دقیقې** | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي.<br>۱- څوک کولای شي (ء) تر (ی) صحیح تلفظ کړي؟<br>۲- څوک کولای شي ووايي چې د هجا وروستنی حرف کوم یو دی؟<br>۳- څوک کولای شي ط- ظ تر (ی) پورې پر تخته ولیکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام ځواب وايي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د نن ورځې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**نولسم لوست**:

## **سرلیک**: **د هجا د حرفونو تطبیق**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د هجا حرفونه وپېژني.
- د هجا حرفونه صحیح تلفظ کړای شي.
- د حرفونو له سم لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

- د تیر لوست اړوند.

**د تدریس لارې:** مطالعه، انفرادي، سوال ځواب.

**د تدریس توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکوکړنه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقه | ښاغلی ښوونکی له حال احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست ارزونه کوي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| ۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او د زده کوونکو پاملرنه خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب آواز سره پیل کوي. بیا نا مرتب حرفونه په ځینو زده کوونکو لولي او غلطي ورته اصلاح کوي. د زده کوونکو پاملرنه خپل ځان ته را اوړي، بیا ګډوډ حرفونه د تختې پرمخ لیکي او اته زده کوونکي په خپل نوبت سره د تختې مخې ته را غواړي او هر یو په خپل نوبت سره دوه دوه حرفونه لیکي او لولي یې دغه شان له نورو زده کوونکو څخه غواړي چې ګډوډ حرفونه له خپلو ځانونو سره په چوپه خوله مطالعه کړي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. دوه زده کوونکي د لوست فعالیت سرته رسوي، نور زه کوونکي ورته پاملرنه کوي. زده کوونکي لوست په چوپه خوله لولي او لیکي یې. |
| ۱۰ دقیقې | **تکرار:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي.<br>۱- څوک ویلي شي له (ض) حرف څخه وروسته کوم حرف راځي؟<br>۲- څوک کولای شي چې د دغه لوست حرفونه صحیح تلفظ کړي؟<br>۳- څوک کولای شي ګډوډ حرفونه ترتیب کړي؟ | زده کوونکي فعالیت په ښه شان سرته رسوي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دغه لوست یو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | رده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام سره ځواب وايي. |

**شلم لوست**:

## **سرلیک**: **د حرفونو یوځای کول**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د هجا حرفونه وپېژني.
- د هجا حرفونه په سمه توګه یو ځای کړای شي.
- د هجا حرفونو له سم لوستلو سره آشنايي حاصله کړي.

**اړین معلومات:**

زده کوونکو په مخیکینو یا تیرو لوستونوکې حرفونه په سم او ګډوډ ډول وپېژندل، په دغه لوست کې مرکب حرفونه یعنې دوه حرفونه په یوه کلمه کې راوړل شوي دي. څو زده کوونکي مرکب حرفونه وپیژني او د مرکبو حرفونو په لوستلو او لیکلو لاس بری ومومي.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| **مقدمه ۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی له حال احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي مثلاً څوک کولای شي د تیر شوي لوست اته ګډوډ حرفونه ترتیب کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي |
| **۲۵ دقیقې د لوست وړاندیز** | بیا د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او د زده کوونکو پام خپلو کتابونوته اړوي، بیا لوست په مناسب اواز سره پیل کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د لوست حرفونه پر تخته لیکي هغه دوه مرکب حرفونه جدا جدا تلفظ کوي. لکه ( لا، بس، تص)<br>بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار د تختې مخې ته راشي او دوه حرفونه یوځای کړي، په مرکب ډول يې د تختې پرمخ ولیکي، څو د نورو زده کوونکو لپاره مرسته او هڅونه شي.<br>**تکرار:** ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې نا مرکب حرفونه د اول نه تر آخره پورې په چوپه خوله له ځان سره مطالعه کړي اوهم زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپلو کتابچوکې يې ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت دنده ورکړل شي په ښه ډول يې سرته رسوي. |
| **۱۰ دقیقې** | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي:<br>۱- څوک کولای شي د لوست اوله کرښه ولولي؟<br>۲- څوک کولای شي د (س) او (ل) حرفونه یوځای پر تخته ولیکې؟<br>۳- څوک ویلی شي چې د (خ، ط) یوځای کولو نه څه جوړیږي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام سره ځواب وايي |
| **۵ دقیقې** | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

## يوويشتم لوست:

## سرليک: مقطعات حرفونه

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

- د مقطعاتو حرفونه وپېژني.
- د مقطعاتو حرفونه سم تلفظ کړي.
- د مقطعاتو حرفونو له سم لوستلو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات:**

**مقطعات هغه حرفونه دي چې د ځينې سورتونو په سرکې راغلي دي.**

**او په معنا باندې يې د الله جل جلاله او د هغه د رسول صلی الله عليه وسلم نه پرته بل څوک نه پوهيږي او ځينې وايي دغه حرفونه د الله جل جلاله او د هغه د پيغمبر صلی الله عليه وسلم ترمينځ خاص راز دی مثال يې (کهيعص) (کاف، ها، ياء، عين، صاد) يا (حم، عسق، حا، ميم، عين، سين، قاف)**

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکوکړنه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقه | ښاغلی ښوونکی له حال احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>لکه څوک کولای شي د (ق، ل) حرفونه یوځای یعني ګډ پر تخته ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز | ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي. لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. بیا مقطعات حرفونه پر تخته لیکي او هریو حرف بیل بیل تلفظ کوي. بیا هر حرف بیل بیل لیکي څو پوه شي چې (الم) درې حرفونه دي هریو ځان ته تلفظ کیږي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| | بیا ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې مقطعات حرفونه په خپلو کتابچو کې بیل بیل ولیکي، بیا له نورو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي هغه مقطعات حرفونه چې په تخته لیکل شوي یوله بل څخه بیل کړي، ترڅو د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب شي. | زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت دنده ورکړل شي په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | **تکرار:** بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې مقطعات حرفونه دخپلو ځانونو سره په چوپه خوله مطالعه کړي او که د مطالعې په وخت کې ستونزه ورته پیداشي یو له بل سره یې په ارامه توګه حل کوي.<br>ترڅو د ټولګي فضاء اخلال نه شي. | زده کوونکي په چوپه خوله لوست مطالعه کوي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره د زده کوونکو ارزونه کوي:<br>۱- څوک کولای شي ( کهیعص) صحیح تلفظ کړي؟<br>۲- څوک کولای شي طس المّٓرّ پر تخته ولیکي؟<br>۳- څوک کولای شي (حم) (عسق) پر تخته ولیکي او حرفونه یې بیل کړي؟<br><br>**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې مقطعات حرفونه یو ځل په کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته په احترام ځواب وایي |

**دوه ویشتم لوست**:

**سرلیک**: **د زور حرکت** (**فتحه**)

مخ:

وخت: یو درسي ساعت۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د زور حرکت (فتحې) سره بلد شي.
- په حرفونوکې د زور حرکت سم تلفظ کړای شي.
- د زور حرکت له سم لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

د زور حرکت د حرف له پاسه لیکل کیږي او په معنا کې مهم رول لري او که په ځینو کلمو کې پاملرنه ورته ونشي، فاحشه غلطي مینځ ته راځي، ان تردې چې لمونځ هم وربانديې فاسديږي لکه (مُّنذِرِينَ) یعنې ویره وونکي یعنې نور خلک ویروي لکه انبیا(ع) او مُنْذَرِين ویرول شوي لکه الله تعالي وايي (وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِم مُّنذِرِينَ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ)

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| **مقدمه ۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی له حال احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، لکه څوک کولای شي (کهیعص) حرفونه صحیح تلفظ کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| **۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز** | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست د سرلیک له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او په مناسب اواز سره لوست پیل کوي. بیا ښاغلی ښوونکی اته زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي، په هر یو باندې په خپل وار سره د لوست یوه کرښه لولي او هم ورڅخه غواړي هغه حرفونه چې زور لري په خپلو کتابونو کې په چوپه خوله مطالعه کړي او هم یې په خپلو کتابچوکې ولیکي.<br>تکرار: د چوپې خولې مطالعې په دوران کې د هر یوه ستونزې په ارامه فضا کې حل کوي، ترڅو د ټولګي فضا نا ارامه نشي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت دنده ورکړل شوې ده په ښه ډول یې سرته رسوي.<br><br>زده کوونکي په چوپه خوله لوست مطالعه کوي. |
| **۱۰ دقیقې**<br><br>**۵ دقیقې** | **ارزونه:**<br>۱- څوک ویلي شي چې زور د حرف په کوم طرف وي.<br>۲- څوک کولای شي د لوست اوله کرښه ولولي او پر تخته یې ولیکي.<br>۳- څوک کولای شي د زور حرکت په (ل- ق- س-ن) کې تلفظ کړي.<br><br>**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په خپلو کتابچو کې پنځه ځله ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي |

**درویشتم لوست:**

**سرلیک: د زیر حرکت (یعني کسره)**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د زیر (کسرې) له حرکت سره آشنا شي.
- په حرفونو کې د زیر حرکت صحیح تلفظ کړي.
- د زیر حرکت له سم لوستلو سره یې مینه پیدا شي.

**اړین معلومات:**

د زیر حرکت (کسره) د حرف لاندې لیکل کیږي او په معنا کې مهم رول لري او په ځینې کلمو کې که د زیر خیال ونه ساتل شي فاحشه غلطي مینځ ته راځي او کله لمونځ هم ورباندې فاسدیږي، لکه: مِنذِرین او منذَرین (وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِم مُّنذِرِينَ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ).

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقه | ښاغلی ښوونکی له حال احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي، څوک کولای شي د زیر حرکت په (ل، س، ق، ن) حرفونو کې تلفظ کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب اواز سره پېل کوي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي . |
| | بیا ښاغلی ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست د خپل کتاب له مخې ولولي په عین وخت کې ښاغلی ښوونکی د ټولګي څارنه کوي او د زده کوونکو ستونزې هم حل کوي او هم زده کوونکو ته لارښوونه کوي څو هغه حرفونه چې زیر لري د کتاب له مخې په پټه خوله مطالعه کړي او بیایې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت دنده ورکول کیږي شوي په ښه توګه یې سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | **تکرار:** د فعالیت د سرته رسولو په وخت کې چې کومې ستونزې پیداکیږي هغه ورته په ارامه فضاکې حل کوي څو ټولګي نا ارامه نشي. | زده کوونکي په چوپه خوله لوست مطالعه کوي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي:<br>۱- څوک ویلی شي چې زیر د حرف په کوم طرف وي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست لومړۍ کرښه د تختې پرمخ ولیکي؟<br>۳- څوک کولای شي د زیر حرکت پر (ن، ل، س، ق) باندې تلفظ کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پنځه ځله په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

## څلور ويشتم لوست:

## سرليک: په کلمو کې د زير او زور استعمال

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

- په حرفونو کې د زور او زير حرکتونه تطبيق کړي.
- په حرفونو کې د زور او زير حرکتونه وپېژني.
- د زور او زير د حرکتونو له سم لوستلو سره يې مينه پيدا شي.

**اړين معلومات:**

د زور حرکت (فتحه) د حرف له پاسه او د زير حرکت (کسره) د حرف لاندې ليکل کيږي او په معنا کې مهم رول لري او په ځينو کلمو کې که د دغو حرکتونو لحاظ ونه ساتل شي، يوه فاحشه غلطي مينځ ته راځي، حتی چې لمونځ هم وربانديې فاسد کيږي لکه مُنْذِيرين او مُنْذَرين چې په تيرو لوستونو کې شرح شول.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقه | ښاغلی ښوونکی له حال احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست ارزونه کوي.<br>مثلاً څوک کولای شي په حرفونو کې د زیر حرکت سم تلفظ کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز | بیا د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او هم د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي، بیا لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. بیا څو تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي هر یو په خپل وار سره لوست د کتاب له مخې لولي، په همدې وخت کې ښوونکي د زده کوونکو ستونزې حل کوي. بیا زده کوونکي په دوو ډلو ویشي، یوې ډلې ته دنده ورکوي چې حرفونو ته حرکت ورکړي او دویمې ډلې ته لارښوونه کوي چې د زیر حرکت په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>بیا د ټولو زده کوونکو په استازیتوب څو کسه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي چې کلمات د تختې پرمخ ولیکي او حرکتونه هم ورکړي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکی فعالیت په ښه شان سرته رسوي.<br>زده کوونکي په چوپه خوله لوست مطالعه کوي. |
| ۱۰ دقیقې | تکرار: ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یو ځل په چوپه خوله مطالعه کړي. | |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی په لاندې پوښتنو سره د زده کوونکو ارزونه کوي.<br>۱- څوک ویلی شي زور د حرف په کوم طرف وي.<br>۲- څوک کولای شي د لوست اوله کرښه پر تخته ولیکي او د زیر حرکت ور کړي؟<br>۳- څوک کولای شي د زور حرکت په (س، ق، ن، ل) کې تلفظ کړي؟<br><br>**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پنځه ځله ولیکي او ویې لولي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |

**پنځه ویشتم لوست**:

**سرلیک**: **د پیښ ( ضمې) حرکت**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکو باید:

- د پیښ له حرکت سره اشنایي پیداکړي.
- په حرفونو کې د پیښ حرکت سم تلفظ کړای شي.
- د پیښ حرکت له سم لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

د پیښ حرکت د کوچني واو په شکل د حرف له پاسه لیکل کیږي او په معنا کې مهم رول لري او که په ځینې کلمو کې ورته پاملرنه ونشي، فاحشه غلطي مینځ ته راځي او که په لمانځه کې پاتې شي، لمونځ وربانديې فاسدیږي لکه د بقرې د سورت د ۲۴ آیت برخه (وَإِذِ ابْتَلَى إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ) ترجمه: هغه وخت چې الله جل جلاله ابراهیم (ع) پر شرعي احکامو په وجه امتحان کړ. که چیرته په رَبُّهُ کې د ضمې پرځای فتحه ولوستل شي، فاحشه غلطي مینځ ته راځي داسې به شي چې ابراهیم(ع) خپل رب په امتحان کې واچولو (نعوذ بالله) یعنې فاعل به ابراهیم او مفعول به الله شي.

| د زده کوونکوکړنه | د ښوونکي کړنه | وخت |
| --- | --- | --- |
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي.<br><br><br><br><br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نيسي .<br><br><br><br><br><br>زده کوونکو ته چې کوم فعاليت ورکړي په ښه شان يې سرته رسوي.<br><br><br><br><br><br><br>زده کوونکي د ښوونکي ځواب وايي. | ښاغلی ښوونکی له حال احوال پوښتنې څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>مثلاً: څوک کولای شي د زير حرکت په (س، ق، ن) کې تلفظ کړي؟<br>د نوي لوست د سرليک له ليکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب اواز سره پيل کوي.<br>بيا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي په خپل وار سره لوست د کتاب له مخې خپلو ټولګيوالو ته ولولي، ښاغلی ښوونکی په همدې وخت کې لوست هم کنترولوي، غلطي ورته اصلاح کوي.<br>البته له هر زده کوونکي څخه غواړي چې يوه کرښه ولولي، بيا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې پيښ لرونکي حرفونه له خپلو ځانونو سره په چوپه خوله مطالعه کړي او بيا يې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br><br>**تکرار:** د چوپې خولې مطالعې په وخت کې او د فعاليتونو د سرته رسولو په وخت کې د دوی ستونزې حل کوي اوهم يې ليکلو او لوستلو ته هم تشويق کوي.<br><br>**ارزونه:** ښوونکی به لا لاندې پوښتنو سره د زده کوونکو ارزونه وکړي:<br>۱- څوک ويلي شي پيښ د حرف کوم طرف ته وي؟<br>۲- څوک کولای شي درې کلمې د اول خط پر تخته وليکي او حرکتونه ورکړي؟<br>۳- څوک کولای شي د پيښ حرکت په حرفونو کې (ل، س، ق، ن) تلفظ کړي.<br><br>**کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې حرفونه پنځه ځله ولولي او ويې ليکي. | **مقدمه**<br>**۵ دقيقه**<br><br><br>**۲۵**<br>**دقيقې د لوست وړانديز**<br><br><br><br><br><br><br><br>**۱۰**<br>**دقيقې**<br><br>**۵**<br>**دقيقې** |

| | | |
|---|---|---|
| | | |

**شپږ ویشتم لوست**:

## **سرلیک**: **د پیښ د حرکت تطبیق په کلماتو کې**

مخ:

وخت: **یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې**

موخې: زده کوونکي باید:

- **د پیښ حرکت( ضمه) په حرفونو کې تطبیق کړي.**
- **د پیښ حرکت (ضمه) په حرفونو کې په سم ډول وپیژندلای شي.**
- **د پیښ د حرکت (ضمې) په سم لوستلو سره مینه پیدا کړي.**

**اړین معلومات:**

**مخکیني لوست سره اړوند ده.**

**د تدریس لارې:** **مطالعه، انفرادي، سوال او ځواب.**

**د تدریس توکي:** **کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسي نور**

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| **مقدمه<br>۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی له حال احوال پوښتنې څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>مثلاً: څوک کولای شي د پیښ حرکت په حرفونو کې تلفظ کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| **۲۵ دقیقې د لوست وړاندیز** | د نوي لوست د سرلیک له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي، او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او په خپل وار سره دوې دوې کرښې د کتاب له مخې ولولي او په همدې وخت کې د زده کوونکو ستونزې حل کوي. او هم زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي.<br>په خپلو کتابچو کې دوې دوې کرښې له حرکاتو سره ولیکئ.<br>او دوې نورې کرښې پر تخته لیکي هغه زده کوونکي ورته راغواړي چې په ټولګي کې یې فعالیت کم وي، څو دوو دوو کلماتو ته حرکات ورکړي، په همدې وخت کې ورته غلطي هم اصلاح کوي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي<br><br>زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورکړل شوی په ښه شان یې سرته رسوي. |
| **۱۰ دقیقې<br><br>۵ دقیقې** | **ارزونه:**<br>۱- څوک ویلې شي چې د پیښ حرکت د کوم حرف په څېر دی؟<br>۲- څوک کولای شي چې د اولې کرښې درې کلمې پر تخته ولیکي او حرکات ورکړي.<br>۳- څوک کولای شي چې د زور حرکت په (س، ق، ن، ل) کې تلفظ کړي.<br><br>**کورنی دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پنځه ځله ولولي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |

**اوویشتم لوست**:

**سرلیک**: **سکون**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- له سکون سره پیژندګلوي پیدا کړي.
- په حرفونو کې سکون سم تلفظ کړای شي.
- د سکون له سم لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

سکون په لغت کې ارامۍ او قرارۍ ته وایي او د تجوید په اصطلاح کې د حرکت ضد ته وایي او په سکون سره شروع نه کیږي، هر حرف چې سکون لري او مخکې حرف یې متحرک وي، د هغه اواز جوړوي.

**د تدریس لارې:** مطالعه، انفرادي، سوال او ځواب.

**د تدریس توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| **مقدمه ۵ دقیقه** | ښاغلی ښوونکی له حال احوال پوښتنې څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| **۲۵ دقیقې د لوست وړاندیز**<br><br>**۱۰ دقیقې** | مثلاً: څوک کولای شي چې د اولې کرښې درې کلمې پر تخته ولیکي او حرکت ورکړي؟<br>بیا ښاغلی ښوونکي د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او هم د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي. لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هریو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي د کتاب له مخې یې ولولي په همدې وخت کې غلطي ورته اصلاح کوي. البته هر زده کوونکی یوه کرښه لولي، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي او هم د لوست دوې اولې کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي او هم د زیر او سکون حرکت په دوو تکراري حرفونو کې د تختې پرمخ ولیکي لکه (ءء، بب، تت)، بیا له څو تنو زده کوونکو غواړي چې په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او درې درې کلمې په لوړ اوازسره ولولي، د زیر او سکون حرکت په کلماتو کې وښیې. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي .<br><br>زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورکړای شي په ښه شکل یې سرته رسوي.<br><br>زده کوونکي لوست په پټه خوله مطالعه کوي. |
| **۵ دقیقې** | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي سکون پر ( ب، ت، ج) باندې د تختې پرمخ ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي چې د لوست درې وروستنۍ کلمې سمې تلفظ کړي؟<br>۳- څوک ویلی شي د نن ورځې سرلیک څه و؟<br><br>**کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په خپلو کتابچو کې یوځل ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام ځواب وايي. |

**اته وېشتم لوست:**

## **سرليک: په کلماتو کې د سکون تطبيق**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

- له سکون سره پېژندګلوي پيدا کړي.
- د سکون رول په حرفونو کې وپېژني.
- د سکون له سم لوستلو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات:**

سکون په لغت کې د ارامۍ او قرارۍ په معنا دی او د تجويد په اصطلاح کې د حرکت ضد ته وايي په سکون سره شروع نه کيږي او هر حرف چې سکون ولري مخکينی حرکت لرونکی حرف يې اواز ښکاره کوي.

**د تدريس لارې:** مطالعه، انفرادي، سوال او ځواب.

**د تدريس توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکوکړنه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقه | ښاغلی ښوونکی له حال احوال پوښتنې څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي. مثلاً څوک کولای شي سکون د (ب، ت، ج) په حرفونو د تختې پرمخ ولیکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| ۲۵ دقیقې د لوست وړاندیز | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او هم د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي، لوست په مناسب اواز سره پېل کوي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي په خپل وار سره لوست د کتاب له مخې ولولي، ښاغلی ښوونکی په همدې وخت کې غلطي هم ورته اصلاح کوي. (البته هر زده کوونکي یوه کرښه لولي)، بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي، بیا ښاغلی ښوونکی د لوست کلمې د تختې پر مخ لیکي، اته زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې هر یو په خپل وار سره د لوست درې کلمې په لوړ آواز سره ولولي او هم د زور، زیراو پیښ حرکتونه په همدې کلمو کې ونښيي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورکړل شوي په ښه ډول يې سرته رسوي.<br>زده کوونکي په چوپه خوله مطالعه کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱- څوک کولای شي چې ( ب، ت. ج ) حرفونو ته سکون ورکړي او د تختې پرمخ يې ولیکي؟<br>۲- څوک ویلي شي د نن ورځې سرلیک مو څه و؟<br>۳- څوک کولای شي د لوست درې وروستنۍ کلمې سمې تلفظ کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام ځواب وايي. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې ننۍ لوست یوځل په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

نه ویشتم لوست:

**سرلیک: د مد حرف الف له فتحې سره**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د مد حرف (ا) وپېژني.
- په حرفونو کې د فتحې حرکت تطبیق کړای شي؟
- له فتحې سره د مد حرف له ویلو سره مینه پیداکړي؟

**اړین معلومات:**

**د مد حرفونه درې ۳ دي چې عبارت دي له ( و، ا، ی ) دغه درې حرفونه هغه وخت د مد حکم اخلي چې خپله ساکن او د مخکې حرف حرکت له خپل جنس څخه وي لکه (و) د ضمې له جنسه (ا) د فتحې له جنسه او (ی) د کسرې له جنسه لکه چې د قرآن کریم د (نُوحِیها) په کلمه کې سره یوځای شوي دي.**

**د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال ځواب**

**د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر داسې نور**

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقه | ښاغلی ښوونکی له حال احوال پوښتنې څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي مثلاً: څوک کولای شي چې سکون د (ب، ت، ج) پرحرفونو باندې د تختې پر مخ ولیکي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې دلوست وړاندیز | د نوي لوست د سرلیک (د مد حرف «فتحه» زور له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي. او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي، بیا هر یو یوه یوه کرښه د کتاب له مخې لولي او ښاغلی ښوونکی همدې وخت کې غلطۍ ورته اصلاح کوي او هم زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي د لوست دوه لومړنۍ کرښې پر تخته لیکي، بیا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي دوې کلمې د تختې پرمخ ولیکي، څو دغه کړنه د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب هم شي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>زده کوونکي یې چې په کوم فعالیت مکلف کړي په ښه طریقه یې سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | ارزونه:<br>۱– څوک ویلی شي چې زور د حرف د پاسه وي که لاندې؟<br>۲– څوک کولای شي دلوست له لومړۍ کرښې څخه درې کلمې ولیکي او هم حرکات ورکړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په احترام ځواب وایي. |
| ۵ دقیقې | ۳– څوک کولای شي د زور حرکت په (س، ن، ق) باندې تلفظ کړي؟<br><br>کورنۍ دنده: ښوونکي زده کوونکوته لارښوونه کوي چې لوست پنځه ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

دیرشم لوست:

**سرلیک: د مد د حرف (زور) تطبیق په قرآني کلماتو کې**

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د مد حرفونه وپیژني.
- په مده حرفونو کې د فتحې حرکت سم تلفظ کړای شي.
- په مده حرفونو باندې د فتحې له لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

مده حرفونه درې دي چې عبارت دي له( و، ا، ی) څخه، په هغه وخت کې د مد حکم اخلي چې خپله ساکن او د مخکې حرف حرکت له خپل جنس څخه وي لکه فتحه یا زور د الف له جنس څخه (و) د ضمې له جنس څخه او (ی) د کسرې له جنس څخه دي لکه چې په قرآني کلمو کې په نُوْحِیهَا سره جمع شوي دي.

د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال ځواب

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

دیرشم لوست:

**سرلیک: د مد حرف (الف له کسرې سره)**

مخ:

وخت: یودرسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د (ی) مده حرف و پېژني.
- په مده حرفونو کې کسره صحیح تلفظ کړای شي.
- د مده حرفونو د کسرې له لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

د مد حرفونه درې دي چې له( و، ا، ی) څخه عبارت دي، دغه حرفونه په هغه وخت کې د مد حکم اخلي چې خپله ساکن او د مخکې حرف حرکت یې له خپل جنس څخه وي لکه )(ا) چې مخکې حرف یې فتحه وي یا (ی) چې مخکې حرف یې (کسره) وي یا (و) چې مخکې حرف یې (ضمه یا پیښ) وي لکه چې د قرآن کریم په «نوحیها» کلمه کې سره یوځای شوي دي.

د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال ځواب

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کونکو کړنه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له حال احوال او روغبړ څخه وروسته د ټولګی نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي لکه څوک ویلی شي چې زور د حرف د پاسه وي او که لاندې؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| ۲۵ دقیقې | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او د زده کوونکو پام خپلو کتابونوته اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي، بیاله څو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل ځای کې ودریږی او یوه کرښه له لوست څخه ولولي او په همدې وخت کې غلطي ورته اصلاح کوي، ځینې حرفونه لولي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او د لوست دوې اولې کرښې له حرکاتو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا د لوست دوې کرښې د تختې پرمخ لیکي او له زده کوونکو څخه غواړی چې د تختې مخې ته راشي دوې کلمې د تختې پرمخ ولیکي او هم ځینې کلمې په زده کوونکو باندې مشق او تمرین کوي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | ارزونه: څوک کولای شي د لوست درې کلمو ته حرکتونه ورکړي؟<br>څوک کولای شي د لوست د لومړي خط درې کلمې ولولي؟<br>څوک کولای شي د لوست د آخري خط حروفو ته د زیر حرکت ورکړي؟ | زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورکړل شي په ښه ډول يې سر ته رسوي. |
| ۵ دقیقې | کور نۍ دنده: ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وايي. |

دوه دیرشم لوست:

## سرلیک: په قرآني کلمو کې د حرف مد (الف د کسرې) تطبیق

مخ:

وخت: یو درسي ساعت ۴۵ دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د مد حرف مده (ي) وپیژني
- په مده حرفونو کې د زیرحرکت سم تطبیق کړای شي.
- الف له کسرې سره د مد حرف له لوستلو سره یې مینه پیداشي.

**اړین معلومات:**

د مد درې حرفونه دي چې له ( و، ا،ی) څخه عبارت دي او دغه درې حرفونه په هغه وخت کې د مد حکم اخلي چې خپله ساکن او مخکې حرف متحرک او حرکت یې له خپل جنس څخه وي لکه( و) چې د ضمې له جنس څخه دی (ي) د کسرې له جنس څخه ده او د (ا) ساکن څخه وروسته حرف باندې فتحه وي لکه د قرآن کریم په (نوحیها) کلمه کې سره جمع شوي دي.

د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال ځواب

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له حال احوال څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي، د تیر لوست په هکله پو ښتنې کوي لکه څوک ویلی شي چې د مد حرف د زیر په حرکت کې کوم حرف دی، بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سر لیک او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي د حرفونو مخارج په نظر کې نیسي او په تجوید سره یې تلفظ کوي، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل ځای کې ودریږي او یوه کرښه د کتاب له مخې و لولي او په همدې وخت کې د زده کوونکو غلطۍ اصلاح کوي دغه عمل د زده کوونکو د هڅونې سبب هم ګرځي بیا | زده کوونکی د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وایې <br> زده کوونکی د ښوونکی لوست ته غوږ نیسې |
| ۲۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست له خپلو ځانونو سره په چوپه خوله مطالعه کړي او دوې کرښې له حرکاتو سره په خپلو کتابچو کې ولیکی، بیا ښاغلی ښوونکي دوې کرښې د ټولګي پر تخته ولیکی. بیا له هر زده کوونکي څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشی دوې دوې کلمې د تختې پرمخ ولیکی، دغه رنګه کړنه د نورو زده کوونکو د | زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورکړل شوی هغه یې په سمه توګه سرته رسوي |
| ۱۰ دقیقې | هڅوني سبب هم ګرځي. <br> ارزونه: څوک کولای شي چې له لوست څخه درو کلموته د تختې پرمخ حرکت ورکړي؟ <br> څوک کولای شي د لوست له اول خط څخه درې کلمې ولولي؟ | زده کوونکو د ښوونکي پوښتنو ته په احترام سره ځواب وایي. |
| ۵ دقیقې | څوک کولای شي د لوست وروستۍ کرښه ولولي او د زیر حرکت ورکړي؟ <br> کورنۍ دنده: ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست څو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي | |

درې دیرشم لوست

**سرلیک: د مد حرف (الف د پیښې سره)**

وخت: یو درسي ساعت (**۴۵ دقیقې**)

موخې: زده کوونکي باید:

- د مده حرف (و) وپیژني
- په مده حرفونو کې د ضمې حرکت سم تلفظ کړای شي.
- د مد حرف له (ضمې) سره د لوستلو لیوالتیا پیدا کړي.

**اړین معلومات**

**د مخکي لوست اړوند د مد حروف درې دي چې عبارت دي له (و، ا، ی) دا درې حرفونه په هغه وخت کې د مد حکم ځان ته اخلي چې خپله ساکن او د مخکینې حرف حرکت یې له خپل جنس څخه وي (و) د ضمې له جنس څخه (ا) د فتحې له جنس څخه، (ی) د کسرې له جنس څخه ده. چې د قرآن کریم په (نوحیها) کلمه کې سره جمع شوي دي.**

**د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال او ځواب.**

**د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، او داسې نور.**

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هلکه پوښتنې کوي. لکه څوک کولای شي وواییي د مد حرف د زیر په حرکت کې کوم حرف دی؟ | زده کوونکی د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وايي. |
| ۲۵ دقیقې | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي بیاد زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راړوي او هم لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپلو ځایونو کې ودریږی د لوست څخه یوه کرښه د کتاب له مخې ولولي په همدې وخت کې د زده کوونکو غلطي هم اصلاح کوي او دغه کړنه د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب هم ګرځی، بیا ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي او له لوست څخه اولې دوې کرښې سره د حرکاتو په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا ښاغلی ښوونکی دوه کرښې د تختې پر مخ لیکی، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره دوې دوې کلمې دویم ځل د تختې پرمخ ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورکړل شي په سمه توګه یې سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | ۱- ارزونه: څوک کولای شي له لوست څخه درو کلموته د تختې پرمخ حرکت ورکړي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست درې لومړنۍ کرښې ولولي؟<br>۳- څوک ویلی شي ضمه د کوم حرف شکل لري؟ | زده کوونکی د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وايي. |
| ۵ دقیقې | کورنۍ دنده: ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست دوه ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

څلور دیرشم لوست

**سرلیک: د مد ضمې تطبیق په قرآني آیتونو کې**

مخ:

وخت: یو ساعت درسي (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د مد حرف(و) و پیژني.
- په مده حرفونو کې د ضمې حرکت سم عملي کړای شي.
- د حرف مد (ضمې) له لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات**

د مد حرفونه درې دي چې ( و،ا ،ی) څخه عبارت دي، دغه درې حرفونه په هغه وخت کې د مد حکم اخلي چې خپله ساکن او د مخکې حرف حرکت یې له خپل جنس څخه وي.
لکه (و) د ضمې له جنس څخه (ا) د فتحې له جنس څخه، (ی) د کسرې له جنس څخه ده چې د قرآن کریم په (نوحیها) کلمه کې سره جمع شوي دي.

د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال، ځواب

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور

| وخت | د ښوونكي كړنه | د زده كونكو كړنه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵<br>دقيقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تير شوي لوست په هلكه پوښتنې كوي. د بيلګې په ډول وايي چې ضمه د كوم حرف شكل لري؟ | زده كوونكي د ښوونكي پوښتنو ته سم ځواب وايي. |
| ۲۵<br>دقيقې | بيا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرليک پر تخته ليكي او هم دزده كوونكو پام خپلو كتابونو ته راړوي او لوست په مناسب اواز سره پيل كوي. بيا له څو زده كوونكو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي دوې كرښې د كتاب له مخې ولولي په همدې وخت كې ښوونكی د زده كوونكو غلطي اصلاح كوي، همدغه شان عمل د نورو زده كوونكو د هڅونې سبب هم ګرځي او ښاغلی ښوونكی زده كوونكو ته لارښوونه كوي چې لوست له خپلو ځانونو سره په چوپه خوله مطالعه كړي. هم له حركاتو سره بيايو څو كلمې د تختې پرمخ ليكي چې زده كوونكي مشق ورباندې وكړي.<br>بيا له زده كوونكو څخه غواړي چې هر يو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي يوه يوه كلمه د تختې پرمخ وليكي البته د حركاتو په ليكلو كې ورسره مرسته كوي. | زده كوونكي د ښوونكي لوست ته غوږ نيسي.<br>زده كوونكو ته چې كوم فعاليت ور و سپارل شي په ښه ډول يې سرته رسوي |
| ۱۰<br>دقيقې | ۱- ارزونه: څوک كولای شي د لوست درو كلمو ته د تختې پر مخ حركتونه وركړي؟<br>۲- څوک كولای شي د لوست دوې اولې كرښې ولولي؟<br>۳- څوک كولای شي د (بُورک) كلمه كې حرف مد وښيي؟ | زده كوونكي د ښوونكي پوښتنو ته په احترام سره ځواب وايي. |
| ۵<br>دقيقې | كورنۍ دنده: ښاغلی ښوونكی زده كوونكو ته لارښوونه كوي چې لوست دويم ځل بيا په كتابچو كې وليكي | |

پنځه دیرشم لوست:

**سرلیک: تنوین (دوه زورونه)**

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- تنوین دوه زورونه ( ً ) وپیژني.
- د تنوین حرکت ( ً ) په حرفونو کې عملي کړای شي.
- د تنوین (دوو زورونو) له ویلو او ادا کولو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

تنوین له دوو زورونو، دوو زیرونو او دوو پیښونو څخه عبارت دي او درې واړه د نون اوازونه ورکوي. تنوین د تجوید له نظره څلور حکمونه لري چې عبارت دي له اظهار ، اخفا ، اقلاب او ادغام څخه؛ اظهار په لغت کې ښکاره کولو ته وايي او د تجوید په اصطلاح کې د تنوین ښکاره کولو ته وایې په هغه وخت چې د اظهار له شپږو حرفونو څخه چې (خا، ها، ع، غ، حا) دي، یو حرف وروسته له تنوین څخه راغلي وي لکه (شهیدٌ علی ماتعملون).

اخفا: په لغت کې پټولو ته وایې او د تجوید په اصطلاح د تنوین پټولو ته وايي، وروسته د یو له پنځلسو حروفو له اخفاء څخه د بیلګې په ډول: (عذاباً شدیداً).

اقلاب په لغت کې بدلولو ته وايي او د تجوید په اصطلاح کې د تنوین بدلولو ته وايي، د میم په حرف باندې په هغه وخت کې چې له تنوین څخه وروسته (ب) راغلې وي لکه (الیم بما).

ادغام په لغت کې داخلولو ته وايي او د تجوید په اصطلاح کې د یو حرف داخلول دي، په بل حرف کې لکه (اذ ذهب) اول ذال په دوهم ذال کې مدغم دی، همدارنګه د تنوین او ساکن نون داخلول په حرف کې صورت نیسي. لکه (رعدٌ وبرق – ظلمتٍ لا) البته په هغه وخت کې چې له تنوین څخه وروسته د ادغام له حروفو څخه یو حرف راشي. د ادغام حروف شپږ دي چې د (یرملون) په کلمه کې یو ځای شوي دي. ادغام په دوه ډوله ده.

۱– ادغام له غنې سره چې څلور حرفونه لري (ي، م، ن، و) او ادغام پرته له غنې څخه چې دوه حرفونه لري (ل، ر). ادغام له غنې سره د پوزې له خیشوم څخه اداکیږي او ادغام پرته له غنې د پوزې له خیشوم څخه نه اداکیږي.

د تدریس لارې– مطالعه، په ځانګړي ډول، سوال ځواب.

مرستندویه توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر.

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵<br>دقیقي | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي لکه:<br>څوک ویلي شي چې د تیر شوي لوست سرلیک څه شي و؟ پر تخته لیکي، د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راړوي، بیا لوست په مناسب اواز سره پیل کوي البته د حرفونو مخارج په نظر کې نیسي او حرفونه په تجوید سره تلفظ کوي، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو د ټولګي مخې ته راشي او دوې کرښې د کتاب له مخې ولولي او په همدې وخت کې ورته غلطي هم اصلاح کوي او د زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په پټه خوله مطالعه | زده کوونکی د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وایي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۲۵<br>دقیقي | کړي او دوې کرښې له حرکتونو سره په خپلو کتابچو کي ولیکي، بیا د لوست دوې لومړنۍ کرښې د تختې پر مخ لیکي او په زده کوونکو باندې یې مشق او تمرین کوي. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي، یوه یوه کلمه دویم ځل د تختې پرمخ ولیکي او د تنوین په لیکلو کې ورسره مرسته وکړي. | زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورکړل شوی په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۱۰<br>دقیقي | ارزونه: څوک کولای شي د لوست دروو کلمو ته حرکتونه ورکړي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست دوه اولې کرښې ولولي؟<br>۳- څوک ویلي شي دوه زورونه په کوم نوم سره یادیږي؟ | |
| ۱۰<br>دقیقي | کورنۍ دنده: ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یوځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په ښه شان ځواب وایي. |

شپږ دیرشم لوست

**سرلیک: په قرآني کلماتوکې د تنوین (دوو زورونو) د حرکت عملي کول.**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

تخته، تباشیر

موخې: زده کوونکي باید

- د لوست (تنوین) دوه زورونه و پیژني
- په حرفونوکې د دوو زورونو (تنوین) حرکت عملی کړای شي.
- په کلماتو کې د تنوین( زورونو) عملي کولو سره مینه پیدا کړي.

د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي سوال او ځواب

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر

| وخت | د ښوونکي کړنه | د زده کوونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه<br>۵<br>دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال اوحوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست پر هکله پوښتنې کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک په تخته لیکي د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. | زده کوونکی د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵<br>دقیقې | ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته وایي هغه حرفونه چې زموږ د نني لوست په اول او منیځ جدول کې راغلي په دې وجه دي چې تنوین (دوه زوروونه) په کلمو کې په همغو حروفو باندې نشتون لري.<br>وروسته له څو زده کوونکو غواړي چې په خپل ځای ودریږي او د لوست دوې کلمې د کتاب له مخې و لولي او په همدې وخت کې یې غلطۍ اصلاح کوي او د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب هم ګرځي<br>بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي او د لوست له اولې برخې څخه شپږ کلمې له حرکاتو سره په کتابچه کې ولیکي | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکي ته چې په کوم فعالیت مکلف شوي وي، په ښه شان یې سرته رسوي. |
| ۱۰<br>دقیقې | هم څوکلمې د تختې پرمخ لیکي او بیایې په زده کوونکو باندې مشق او تمرین کوي بیا هم له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي او کلمه دویم ځل پر تخته ولیکي، البته د تنوین په لیکلو کې ورسره مرسته کوي. | |
| ۵<br>دقیقې | ارزونه: څوک کولای شي د لوست درې کلمې پر تخته ولیکي؟<br>څوک کولای د لوست لومړنۍ شپږ کلمې ولولي؟<br>څوک ویلي شي تنوین کومو حرکتونو ته ویل کېږي؟<br>کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یو ځلې په خپلو کتابچوکې و لیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وایي. |

اوو دیرشم لوست

**سرلیک : تنوین (دوه زیرونه)**

مخ

وقت : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخي : زده کوونکي باید :

تنوین ( ٍ ) وپیژني. دوو زیرونو والا تنوین په حرف کې عملي کړای شي. د دوو زیرونو (تنوین) له ویلو او ادا کولو سره مینه یا لیوالتیا پیدا کړي.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو کړنه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکي د حال حوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، د بیلګې په ډول پوښتي. څوک ویلي شي چې د تیر لوست سر لیک مو څه و؟ | زده کوونکی د ښوونکی پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | وروسته ښاغلی ښوونکي د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. البته د حروفو مخارجو خیال ساتي او حرف په تجوید سره تلفظ کوي. بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي دوې کرښې د کتاب له مخې ولولي، په همدې وخت کې ښوونکی ورته غلطی هم اصلاح کوي او د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب هم ګرځي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي. او هم د لوست دوې اولې کرښې د حرکتونو سره په خپلو کتابچو کې لیکي. | زده کوونکو د ښوونکی لوست ته غوږ نیسي. زده کوونکي ته چې کوم فعالیت ورکړل شوی، په ښه شان یې سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د لوست اوله کرښه پر تخته لیکي او پر زده کوونکو باندې یې مشق او تمرین کوي، بیاله زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، یوه کلمه د دویم ځل لپاره د تختې پرمخ لیکي البته د تنوین په ورکولو کې ورسره مرسته کوي | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وایي. |
| ۵ دقیقې | ارزونه: څوک کولای شي د لوست دروو کلموته د تختې پرمخ حرکت ورکړي؟ څوک کولای شي د لوست دوې اولې کرښې ولولي؟ څوک ویلي شي دوه زیرونه په کوم نوم یادیږي؟ کورنۍ دنده: ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

اته دیرشم لوست

**سرلیک : د قرآن په کلمو کې د دوو زیرونو (تنوین) د حرکت تطبیق او عملي کول**

مخ :

وخت : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخي : زده کوونکي باید :

– د دوو زیرونو تنوین وپیژني.

– د تنوین حرکت (دوه زیرونه) په حرفونو کي صحیح عملي کړای شي.

– د دوو زیرونو یعنې تنوین لوستلو او عملي کولو سره مینه پیداکړي.

تنوین عبارت دي له دوو زورونو، دوو زیرونو او دوو پیښونو څخه چې درې واړه د نون آواز ورکوي لکه (دٍ) د تجوید له لحاظه څلور حکمونه لري چې عبارت دي :۱– اظهار ۲– احفا ۳– اقلاب ۴– ادغام

د تدریس لارې: مطالعه انفرادي سوال ځواب

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کونکو کړنه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه 5 دقیقې | ښاغلی ښوونکي د حال او حوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي لکه څوک ویلي شي د تیر لوست سر لیک مو څه و؟<br>وروسته ښاغلی ښوونکي د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي، د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راړي اولوست په مناسب اواز سره پیل کوي. | زده کوونکی د ښوونکی پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | بیا زده کوونکو ته وایي هغه حرفونه چې د ننني لوست په اول او منځ کې راغلي دا په دې وجه چې تنوین یعنې دوه زیرونه په همدغو حرفونو باندې دي، بیاله څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل ځای کې ودریږي او دوې دوې کلمې له لوست څخه و لولئ په همدې وخت کې ښوونکی غلطي هم ورته اصلاح کوي. | زده کوونکی د ښوونکی لوست ته غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | دغه شان کړنه د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب ګرځي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا د لوست څو کلمې پر تخته لیکي ددې لپاره چې په زده کوونکو یې مشق او تمرین کړي. هم له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي هغه کلمات دویم ځل بیا پر تخته ولیکي او په حرکت ورکولوکې ورسره مرسته وکړي . | زده کوونکو چې په کوم فعالیت باندې مکلف کړای شوي په ښه شان یې سرته رسوي. |
| ۵ دقیقې | ۱- ارزونه: څوک کولای شي د لوست درې کلمې پر تخته ولیکي؟<br>۲- څوک کولای شي د لوست شپږ اولې کلمې ولولي؟<br>۳- څوک ویلی شي تنوین کوم حرکت ته ویلی شي؟<br>کورنۍ دنده: ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکی د ښوونکي پوښتنوته سم ځواب وایي. |

نهه دېرشم لوست

**سرلیک : تنوین (دوه پیښنونه)**

**مخ**

وخت : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې : زده کوونکي باید :

– (تنوین)دوه پیښنونه وپیژني.

– د تنوین حرکت دوه پیښنونه په حرفونو کې صحیح عملی کړای شي.

– په حرفونو کې د تنوین له لوستلو او عملي کولو سره مینه پیداکړي.

**اړین معلومات:**

دتیر لوست اړوند دی

سوال ځواب

د تدریس لارې: مطالعه په ځانګړي ډول.

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته ، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکي د حال اوحوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، د بیلګې په ډول څوک ویلي شي چې د تیر لوست سرلیک موڅه و؟ د لوست د سرلیک له لیکلو څخه وروسته زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته کوي، بیا لوست په مناسب اواز سره پیل کوي، البته د حرفونو مخارج په نظرکې نیسي حرف په تجوید سره تلفظ کوي، بیاله زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي، دوې کرښې د کتاب له مخې و لولي، ښاغلی ښوونکي په همدې وخت کې غلطي ورته اصلاح کوي او دغه کړنه د نورو زده کوونکو د هڅونې لامل هم ګرځي. | زده کوونکي د ښوونکی پوښتنو ته ځواب وایي.<br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۲۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په ټیټه خوله مطالعه کړي او دوې اولې کرښې له حرکاتو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي، ښاغلی ښوونکي اوله کرښه پرته له تنوین څخه د تختې پر مخ لیکي، بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره راشي یو حرف ته تنوین ورکړي او ویې لولي. | زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورسپارل شوي په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | ارزونه: څوک کولای شي له لوست څخه دروو حرفونو ته حرکت ورکړي؟<br>١ څوک کولای شي دوې لومړنۍ کرښې ولولي؟<br>٣ څوک ویلي شي دوه پیښونه دحرف په کوم طرف کې وي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته سم ځواب وایي. |
| ۵ دقیقې | کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکي زده کوونکوته لارښوونه کوي چې لوست یو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

ځلو يښتم لوست

**سرليک : په قرآني کلماتوکې ددوو پيښونو د حرکت تطبيق.**

مخ :

وخت : يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې : زده کوونکي بايد:

- د دوو پيښونو (تنوين) و پيژني
- د تنوين حرکت په کلموکې صحيح تطبيق کړای شي.
- په کلموکې د تنوين لوستلو او ادا کولو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات**

د تير لوست اړوند دی.

د تدريس لارې: مطالعه په ځانګړي ډول) او سوال ځواب

د تدريس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال او حوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او دتیر لوست په هکله پوښتنې کوي لکه څوک ویلي شي چي دوه پیښونه د حرف په کوم طرف وي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي، د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راړوي، لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. او بیاله څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل ځاي ودریږي څلور څلور، کلمې له لوست څخه د کتاب له مخې ولولي په همدې وخت کې غلطي ورته اصلاح کوي او دغه کړنه د نورو زده کوونکو لوست ته د هڅونې سبب هم ګرځي. بیا ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي، لوست په پټه خوله مطالعه کړي او له لوست څخه شپږ کلمې د حرکاتو سره په خپلوکتابچوکي ولیکي بیا څو کلمي له لوست څخه په تخته لیکي په زده کوونکو باندې مشق او تمرین کوي، بیاله څو تنه زده کوونکو څخه غواړي چې کلمې دویم ځل په تخته ولیکي او په حرکت لیکولو کې ورسره مرسته وکړي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. زده کوونکو ته چې کوم فعالیت ورسپارل شوي په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | ارزونه : څوک کولای شي درې کلمې له لوست څخه پر تخته ولیکي ؟<br>۲ څوکولای شي شپږ کلمې له اول له لوست څخه ولولي؟<br>۳ څوک ویلي شي تنوین د کوم حرف اواز ورکوي؟<br>کورنۍ دنده : زده کوونکي د لوست یو ځل په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| ۵ دقیقې | | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې سمې ځوابوي. |

یو څلویښتم لوست

**سر لیک: شد (ـّـ)**

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

مخ

موخې: زده کوونکو باید

۱– شدّ و پیژني.

۲– شدّ په کلمو کې صحیح استعمال کړای شي.

۳– په کلموکې د شدّ لوستلو او ادا کولو سره مینه پیدا کړي.

د تدریس لارې: مطالعه، په ځانګړي ډول، سوال او ځواب

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور

**اړین معلومات:**

د شد حرفونه هغه حرفونه ته وایي چې له پاسه وربانديې د شدّ علامه وي، په حقیقت کې هر مشدد حرف دوه حرف وي چې لومړی حرف ساکن او دویم متحرک وي لکه (من یّقول من ی، یّقول) د شد حرف باید دروند تلفظ شي چې د دوو حرفونو حق ادا شي. شد د حرفونو او کلمو په معنا کې مهم رول لري لکه (اِلّا – الی) چې د اول په معنا مګر ده او دویم معنا طرف سره ده

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، لکه څوک ویلي شي چي تنوین د کوم حرف اواز ورکوي؟ | زده کوونکی د ښوونکی پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | وروسته د سرلیک له لیکلو څخه (شد «ـّـ») د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته راړاوي، بیا لوست په مناسب اواز سره پیل کوي، په داسې ډول چې د دوو حروفو حق ادا شي، وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل ځای و دریږي، څلور کلمې د کتاب له مخې ولولي، په همدې وخت کې یې ښوونکی غلطي هم ورته اصلاح کوي او هغوی زده کړې ته هڅوي. او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او شپږ کلمې د لوست له اول څخه له حرکاتو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي او وروسته هغه په زده کوونکو باندې مشق او تمرین کوي، وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره یوه کلمه پر تخته ولیکي البته د حرکاتو په لیکلو کې ورسره همکاري کوي. | زده کوونکي د ښوونکی لوست ته غوږ نیسي. زده کوونکي فعالیت سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | ارزونه : څوک کولای شي له لوست څخه درې کلمې پر تخته ولیکي ؟<br>۲ څوکولای شي د لوست اوله کرښه ولولي؟<br>۳ څوک کولای شي د شد علامه پر تخته ولیکي؟ | |
| ۵ دقیقې | کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |

دوه څلو ښېتم لوست

**سرليک: شد** (ّ)

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

– شد وپيژني.

– د شد حرکت په کلمو کې صحيح عملي کړای شي.

– په کلمو کې د شد حرکت له عملي کولو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات**

مشدد حرفونه هغو حرفونو ته ويل کيږي چې له پاسه وربانديې د شد علامه وي، په حقيقت کې هر حرف چې مشدد وي دوه حرف دی، چې لومړي حرف ساکن دويم متحرک وي لکه (مَن يَّقول) مشدد حرف بايد دروند ولوستل شي، چې د دوو حرفونو حق ادا شي. شد د حرفونو او کلماتو په معنا کې مهمه ونډه لري لکه(اِلّا– الی) اول حرف په معنا د مگر دوهم حرف په معنا د طرف سره دی.

د تدريس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال، ځواب

د تدريس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه<br>۵<br>دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، لکه څوک کولای شي د شد شکل پر تخته ولیکي. | زده کوونکی ځواب وایي. |
| ۲۵<br>دقیقې | وروسته ښاغلی ښوونکی د نوي لوست له سرلیک لیکلو څخه د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي په داسې شکل سره چې د دوو حرفونو حق ادا شي، وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل ځای ورسیږي څلور کلمې د لوست د کتاب له مخې ولولي، په عینې وخت کې غلطي هم ورته اصلاح کوي د او هغوی د هڅونې هدف ګرځوي او ز ده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي، د لوست له اول څخه شپږ کلمې د حرکاتو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي او څو کلمې د لوست له اخیري برخې څخه پر تخته لیکي او په زده کوونکو یې مشق او تمرین کوي. | زده کوونکي د ښوونکی لوست ته غوږ نیسي.<br>زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شوې سرته یې رسوي |
| ۱۰<br>دقیقې | وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي، یوه یوه کلمه پر تخته ولیکي البته د حرکاتو په لیکلو کې ورسره مرسته کوي. | |
| ۵<br>دقیقې | ارزونه : څوک کولای شي د لوست درې کلمې پر تخته ولیکي ؟<br>۲ څوک کولای شي د لوست اوله کرښه ولولي؟<br>۳ څوک کولای شي د شد علامه پر تخته رسم کړي؟<br>کورنۍ دنده: ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |

دري څلوېښتم لوست

## سرليک: په قرآني کلموکې د( شد (-ّ) ) عملي کول

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

- شد و پيژنې.
- د شد حرکت په کلمو کې صحيح استعمال کړي.
- په کلماتو کې د شد له لوستلو او ادا کولو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات**

مشدد حرفونه هغو حرفونو ته وايي چې له پاسه وربانديې د شد علامه وي(ـّ) په حقيقت کې هر حرف چې مشدد وي، دوه حرفونه دي چې اول يې ساکن دويم حرف يې متحرک وي لکه(مَن يّقول)، نو مشدد حرف بايد ثقيل تلفظ شي چې د دوو حرفونو حق ادا شي. شد د حرفونو او کلماتو په معنا کې مهم رول لري لکه ( اِلَّا– الی) اول حرف مگر په معنا دويم حرف د طرف په معنا دی.

د تدريس لارې: مطالعه، انفرادی، سوال ځواب.

د تدريس توکي: کتاب، کتابچه، تخته تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه<br>۵<br>دقیقې | ښاغلی ښوونکي د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او دتیر لوست په هکله پوښتنې کوي، د بیلګې په ډول څوک کولای شي ووایي، د تیر لوست سر لیک مو څه و؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| | وروسته ښاغلی ښوونکي د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي په داسې ډول چې په کلماتو کې د دوو حروفونو حق ادا شي. زده کوونکو ته وایي هغه حرفونه چې د لوست په اوله برخه او په منځنې برخه کې راغلي دي هغه مشدد توري او کلمې دي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۲۵<br>دقیقې | وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل ځای کې ودریږي. څلور کلمې له لوست څخه د کتاب له مخې و لولي او په عینې وخت کې غلطۍ هم ورته اصلاح کوي او دغه کړنه د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب هم ګرځي، بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او د لوست له اولې برخې څخه شپږ کلمې له حرکاتو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي او د لوست له وروستۍ برخې څخه څو کلمې د تختې پرمخ لیکي او هغه په زده کوونکو باندې تمرین کوي | زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شوې په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۱۰<br>دقیقې | بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره راشي یوه یوه کلمه د تختې پرمخ ولیکي او په لیکلو کې ورسره مرسته کوي. | |
| ۵<br>دقیقې | ارزونه: څوک کولای شي د لوست درې کلمې پر تخته ولیکي ؟<br>۲ څوک کولای شي د لوست اوله کرښه ولولي؟<br>۳ څوک کولای شي د سخرها په کلمه کې شد وښیي؟<br>کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست یو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |

څلور څلويښتم لوست

**سر ليک: دفاتحې سورت (۱۰۳)**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت ۴۵ دقيقې

موخې: زده کوونکي بايد:

- د فاتحې سورت درې آيتونه حفظ کړي او پوه شي چې په لمانځه کې لوستل کيږي.
- د سورت فاتحې له لوستلو او حفظ کولو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات**

**بسم الله الرحمن الرحيم**

(١) الحَمْدُ للهِ رَبِّ العَالَمِينَ (٢) الرَّحْمـنِ الرَّحِيمِ (٣) مَـلِكِ يَوْمِ الدِّينِ (٤) إِيَّاكَ
نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ (٥) اهدِنَـــا الصِّرَاطَ المُستَقِيمَ (٦) صِرَاطَ الَّذِينَ أنعَمتَ عَلَيهِمْ
غَيرِ المَغضُوبِ عَلَيهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ (٧)

ژباړه: د الله ﷻ په نوم شروع کوم چې ډير مهربان او زيات رحم لرونکی دی.

۱- ټوله ثنا ستاينه يوازې الله ﷻ ته ده چې د ټولو مخلوقاتو پالونکی دی.

۲- ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی.

۳- د جزا د ورځې مالک دی.

۴- موږ همدا ستا عبادت کوو او همدا له تا نه مرسته غواړو.

۵- موږ ته سمه لاره وښيه.

۶- د هغو کسانو لار چې تا پرې پيرزوينه کړيده.

۷- نه د هغو کسانو لاره چې غضب ورباندې شوی او نه  د هغو کسانو لاره چې هغه لار د ګمراهانو ده.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال وحوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي لکه څوک کولا ی شي د لوست اوله کرښه ولولي؟ وروسته ښاغلی ښوونکي د نوي لوست سرلیک (د فاتحې سورت) پر تخته لیکي او د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي د تجوید د قواعدو خیال ساتي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| ۲۵ دقیقې | وروسته ښاغلی ښوونکی د سورت فاتحې لومړني درې ایتونه چې د نن ورځې لوست دی پر تخته لیکي، بیا په خپله آیتونه کلمه کلمه لولي، زده کوونکی یې ورپسې تکرار وي. بیا له شپږو زده کوونکو څخه غواړي چې هریو پخپل وار سره د ټولګې مخې ته راشي او د تختې له مخې یو آیت ولولي او نور ټول زده کوونکي یې ورسره تکرار وي دا له نورو زده کوونکو سره مرسته هم ده او د زده کوونکو د هڅوني لامل هم دی او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او که څوک په لوست کې ستونزه لري خپل لاس | زده کوونکی د ښوونکی لوست ته غوږ نیسي. زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي سرته یې رسوي |
| ۱۰ دقیقې | پورته کوي ښاغلی ښوونکی صاحب هر یوته په کراره سره ځواب وایي. | |
| ۵ دقیقې | ارزونه : څوک کولای شي د سورت فاتحې لومړی آیت د تختې له مخې ولولي؟ ۲ څوک کولای شی دویم او دریم آیتونه د تختې له مخې و لولي؟ ۳ څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي؟ کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د فاتحې سورت د خپلو مشرانو په مرسته حفظ کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې په احترام سره ځوابوي. |

پنځه څلویښتم لوست

## سر لیک: د فاتحې سورت ۴.۵ آی‌تونه

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د سورت فاتحې دوه آیتونه حفظ کړي او په دې پوه شي چې په لمانځه کې لوستل کیږي.
- د فاتحې سورت په دوو آیتونو باندې صحیح تلفظ وکړای شي.
- د فاتحې سورت د آیتونو د لوستلو او له یادولو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات:**

د فاتحې سورت مکي او مدني دواړه دی ځکه حضرت جبریل ؑ یو ځل وحې په نبي کریم ﷺ باندې په مکه مکرمه کې او دویم ځل یې په مدینه منوره کې راوړه، نو ځکه دا سورت هم مکي او هم مدني دی.

د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال ځواب،

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي.<br><br><br><br><br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي<br><br>زده کوونکو ته چې کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په ښه ډول يې سرته رسوي.<br><br><br><br><br>زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې په احترام سره ځوابوي. | ښاغلی ښوونکي د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي (د بیلګې په ډول څوک کولا ی شي د فاتحې سورت درې لومړني آیتونه صحیح تلاوت کړي؟<br>بیا د نوي لوست د سرلیک له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب او از سره پیل کوي.<br>البته د تجوید قواعدوته پاملرنه کوي<br>وروسته د لوست څو آیتونه د تختې پرمخ لیکی، ښوونکی صاحب يې ټکي په ټکي یا کلمه په کلمه لولي، زده کوونکي يې ورسره تکراروي بیا له شپږو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د تختې له مخې یو آیت تلاوت کړي، نور ټول زده کوونکی يې ورسره تکرار وي، په دغه صورت کې زده کوونکي نور هم هڅیږي.<br>بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او که څوک ستونزه لري خپل لاس پورته کوي، ښوونکی په ارامه فضاکې هر یوه ته ځواب وايي.<br>ارزونه : څوک کولای شي د لوست یو آیت د تختې له مخې ولولي؟<br>۲ څوکولای شي دویم آیت د تختې له مخې ولولي؟<br>۳ څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي؟<br>کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست د کورنۍ د مشرانو په مرسته یاد کړي. | مقدمه<br>۵<br>دقیقې<br><br><br><br><br><br><br>۲۵<br>دقیقې<br><br><br><br><br><br>۱۰<br>دقیقې<br><br><br>۵<br>دقیقې |

شپږ څلوېښتم لوست

## سر لیک: د فاتحې سورت (۲) آیت

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکو باید:

- د فاتحې سورت آیتونه حفظ کړي او پوه شي چې په لمانځه کې کوستل کیږي.
- د فاتحې سورت د آیتونو کلمې صحیحې تلفظ کړي.
- د فاتحې سورت د آیتونو له یادولو او لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات**

د فاتحې سورت زیات نومونه لري (سبع المثاني) ځکه چې اوه آیتونو دي چې د لمانځه په هر رکعت کې لوستل کیږي او همدارنګه دوه ځله نازل شوي ده.

۲-( فاتحة الکتاب) ځکه د قرآن کریم شروع په دې سورت سره شوي ده.

۳-( ام القرآن) ځکه چې ټول قرآن کریم (۱۱۴) سورتونه او له ۶۰۰۰ څخه د زیاتو آیتونو لرونکی دي په ټولیز ډول په سورت فاتحې کې جمع شوي دي.

۴- (شفا) صحابه کرامو به چې کله په یو مریض سورت فاتحه و لوستله الله ﷻ به شفا ورکړه، نو په دې سورت سره به یې د مریض درملنه کوله.

د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي. سوال ځواب

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵<br>دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي؛ مثلاً: څوک کولای شي د فاتحې سورت پنځم آیت تلاوت کړي؟<br>وروسته ښاغلی ښوونکی د تیر لوست د سرلیک (دفاتحې سورت) له لیکلو څخه د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي او د تجوید قواعدو ته پاملرنه کوي.<br>بیا د نني لوست له آیتونو څخه یو آیت پر تخته لیکي او په خپله یوه یوه کلمه لولي زده کوونکي یې ورسره تکراوي. | زده کوونکی د ښوونکی پوښتنو ته ځواب وایې<br><br><br><br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نسي. |
| ۲۵<br>دقیقې | بیا له څلورو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د تختې له مخې یو آیت تلاوت کړي، نور ټول زده کوونکي یې ورسره تکراوي، مرسته او هڅونه صورت مومي.<br>زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي او که څوک په لوست کې ستونزه لري خپل لاس پورته کوي ښاغلی ښوونکی د هریوه پوښتني ته ځواب وایي. | زده کوونکو ته چې کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي، په بشپړ ډول یې سرته رسوي |
| ۱۰<br>دقیقې | ارزونه : څوک کولای شي د لوست آیت د تختې له مخې و لولي؟<br>۲ څوک کولای شي له لوست څخه د آیت یوه کلمه د تختې پرمخ ولیکي.<br>۳ څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي؟ | |
| ۵<br>دقیقې | کورنۍ دنده : زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست د خپلې کورنۍ د مشرانو په مرسته حفظ کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې احترام سره ځوابوي |

اوو څلویښتم لوست

## سر لیک: د فاتحې سورت

مخ

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- دفاتحې سورت حفظ کړي او په دې پوهه شي چې په لمانځه کې لوستل کیږي.
- د فاتحې سورت صحیح تلفظ کړای شي
- د فاتحې سورت له یادولو او لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات**

**د فاتحې سورت د فضلیت په باره کې له حضرت محمد ﷺ څخه لاندې حدیث روایت شوی دی: عن عبدالمالک بن عمیرمرسَلاً قال قال رسول الله ﷺ (في فاتِحَةِ الکتاب شفاء من کل داء رواه البهیقي)**

**ترجمه: له عبدالملک بن عمیر څخه مرسَلاً روایت دی، هغه وایي رسول الله ﷺ ویلي چې سورت فاتحه کې له هر مرض څخه شفا ده. په دې شرط سره چې په اخلاص او یقین سره ولوستل شي (امام بهیقي روایت کړی دی)**

**د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال او ځواب.**

**د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.**

| د زده کونکو فعالیتونه | د ښووونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي د ښوونکی پوښتنو ته سم ځواب وايي | ښاغلی ښوونکی د حال اوحوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي لکه:<br>څوک کولا ی شي له فاتحې سورت څخه دوه آیتونه ولولي؟<br>بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سر لیک پر تخته لیکی او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجې کوي، بیا لوست په مناسب اواز سره پیل کوي او د تجوید قواعدو ته پاملرنه کوي. | مقدمه ۵ دقیقې |
| زده کوونکي د ښوونکی لوست ته غوږ نیسي | بیا له شپږو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د فاتحې سورت له یاده ولولي، ښوونکی ورته لفظي او تجویدي غلطي اصلاح کوي؟ | ۲۵ دقیقې |
| زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په بشپړ ډول یې سرته رسوي. | بیا ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او په دغه وخت کې ښوونکی په ټولګي کې ګرځي په ارامۍ سره مشکل ورته حل کوي، بیا زده کوونکي په مناسبو ډلو وېشي او د هر ګروپ له نماینده څخه غواړي چې په خپل نوبت سره د ټولګي مخې ته راشي د فاتحې سورت ولولي او د فعالیت د سرته رسولو په وخت کې د تختي پرمخ نمرې هم ورکوي، بیا ښوونکی صاحب سورت فاتحه لولي چې زده کوونکي پر خپلو غلطیو باندې پوه شي. | ۱۰ دقیقې |
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې احترام سره ځوابوي. | ارزونه : څوک کولای شي د فاتحې سورت له یاده ولولي؟<br>۲ څوک ویلی شي چې د فاتحې سورت څو آیتونه لري؟<br>۳ څوک ویلی شي د قران کریم لومړی سورت کوم دی؟<br>کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د خپلو مشرانو په مرسته سورت فاتِحَه حفظ کړي. | ۵ دقیقې |

اته څلوېښتم لوست

**سرليک: د اخلاص سورت (۱-۲)**

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

مخ:

موخې: زده کوونکي بايد:

- د اخلاص سورت لومړی او دويم آيتونه سم ولولي.
- د اخلاص د سورت کلمې صحيح تلفظ او يادې کړای شي.
- د اخلاص سورت له لوستلو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات**

د اخلاص سورت د مکي سورتونو له ډلې څخه دی يعنې په مکه معظمه کې نازل شوی دی. په دغه سورت کې توحيد بيان شوی او دا هم پکې بيان شوي چې الله ﷻ بې پروا دی او نه له ده څخه څوک پيدا شوي او نه دی له چا څخه پيدا شوی دی.

دا سورت د هغه کسانو په ځواب کې نازل شوی دی چې هغوی د ډېرو خدايانو قايل او منونکي وو لکه يهود وايي، عزير عليه السلام د الله ﷻ زوی دی، نصارا وايي عيسی عليه السلام د الله ﷻ زوی دی.

د تدريس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال ځواب

د تدريس توکې: کتاب، کتابچه، تخته تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقې<br><br><br><br><br><br><br>۲۵ دقیقې<br><br><br><br><br>۱۰ دقیقې<br><br><br>۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر شوي لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>څوک کولای شي د اخلاص سورت دوه آیاتونه په یاد ولولي؟<br>بیا ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سر لیک له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونوته را اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي (بیا پر نن ورځې پورې اړوند آیتونه پر تخته لیکي او خپله یې ټکي په ټکي لولي، زده کوونکي یې ورسره تکراروي. (بیا له څلورو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته را شي او د تختې له مخې یو یو آیت تلاوت کړي او نور زده کوونکي یې ور سره تکرار وي، ترڅو زده کوونکي هم تشویق شي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي.<br>د ټولګي په هر طرف کې د ټولو زده کوونکو ستوتزې حل کوي.<br>ارزونه : څوک کولای شي د لوست اول آیت پر تخته ولیکي؟<br>۲ څوک کولای شي د لوست دویم آیت صحیح ولولي؟<br>۳ څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي؟<br>کورنۍ دنده : زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د خپلو مشرانو په مرسته لوست حفظ کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په ښه ډول یې سرته رسوي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې په احترام سره ځوابوي. |

نهه څلوېښتم لوست

**سرليک: د اخلاص سورت (۳-۴)**

مخ:

وخت: يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې: زده کوونکي بايد:

- د اخلاص سورت دريم او څلورم آيتونه صحيح ولولي.
- د اخلاص سورت کلمې صحيح تلفظ کړای شي.
- د اخلاص سورت له لوستلو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات**

کله چې د مکې مشرکينو له حضرت محمدﷺ څخه وغوښتل چې د خپل الله جل جلاله صفت دې مونږ ته بيان کړه! د دوی په ځواب کې الله جل جلاله دغه سورت نازل کړ.

د تدريس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال ځواب

د تدريس توکي: کتاب، کتابچه، تخته تباشر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵<br>دقیقې | ښاغلی ښوونکی له حال احوال پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>څوک کولا ی شي د پرون ورځې لوست له سم تلفظ سره تلاوت کړي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست د سرلیک له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونوته اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي د تجوید قواعدوته پام لرنه کوي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي |
| ۲۵<br>دقیقې | وروسته هغه آیتونه چې د نن ورځې درس اړوند دي، پر تخته لیکي، په خپله یې ټکي په ټکي لولي، زده کوونکی یې ورسره تکراروي او لارښوونه ورته کوي، ترڅو لوست په پټه خوله مطالعه وکړي او خپله د ټولګي هرطرف ته پاملرنه کوي او د زده کوونکو ستونزې حل کوي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۱۰<br>دقیقې | زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي د تختې له مخې یو یو آیت تلاوت کړي، نور زده کوونکي یې هم ورسره تلاوت او تکرار وي، تر څو نور زده کوونکي لوست ته وهڅوي.<br>ارزونه : څوک کولای شي د لوست اول آیت د تختې له مخې ولولي؟<br>۲ څوک کولای شي د لوست دویم آیت د کتاب له مخې ولولي؟<br>۳ څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي؟ | زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي، په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۵<br>دقیقې | کورنۍ دنده: ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست د خپلو مشرانو په مرسته یاد کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې په احترام سره ځوابوي |

پنځوسم لوست

**سرلیک: د اخلاص سورت**

**مخ: ۴ – ۵**

**وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- **د اخلاص سورت حفظ کړي.**
- **د اخلاص د سورت آیتونه صحیح تلفظ کړای شي.**
- **د اخلاص د سورت له ویلو او یادولو سره مینه پیدا کړي.**

**اړین معلومات**

**له صحابه وو څخه یو صحابي رسول الله ﷺ ته وړاندوینه وکړه چې ای د الله ﷻ رسوله! زه د اخلاص سورت سره مینه لرم او په لمانځه کې یې ډېر لولم. رسول الله ﷺ هغه سړي ته وویل: د ستا دغه مینه او دوستي به تا تر جنته پورې ورسوي.**

**سورت اخلاص له زیاتو فضیلتونو څخه برخمن دی، په یو حدیث شریف کې رسول الله ﷺ فرمایلي: چا چې یو ځل د اخلاص سورت ولوستلو داسې ده، لکه د قرآن کریم دریمه برخه یې چې لوستلې وي او که څوک دغه سورت درې ځلي ولولي لکه ټول قرآن کریم یې چې لوستلی وي.**

**د تدریس لارې: مطالعه، انفرادي سوال ځواب**

**د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته، تباشر او داسې نور.**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه<br>۵<br>دقیقې | ښاغلی ښوونکي د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولگي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>د بیلگې په ډول: څوک کولای شي تیر لوست صحیح تلفظ کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| ۲۵<br>دقیقې | ښوونکی د نوي لوست سرلیک له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونوته را اړوي. بیا د تجوید قواعدو ته په پام لرنې سره لوست په مناسب اواز سره پیل کوي (بیا ښوونکی پنځه زده کوونکي چې په ټولگي یې ونډه کمه وي د ټولگي مخې ته را غواړي چې هر یو په خپل وار سره سورت په یاد ولولي، لفظي او تجویدي غلطي ورته اصلاح او د نورو زده کوونکو د تشویق سبب هم گرځي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۱۰<br>دقیقې | زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي په همدې وخت کې ښوونکی د ټولگي د هر کونج او کنار زده کوونکو ته گوري ستونزې ورته حل کوي (بیا ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په څو ډلو ویشي هرې ډلې ته نوم ورکوي. له هرې ډلې څخه غواړي چې په خپل وار د تختې مخې ته راشي او لوست( سورت اخلاص) په یاد ولولي د فعالیت د سرته رسولو په وخت کې صنف کنټرولوي، هر نماینده یا هرې ډلې چې صحیح تلفظ او له یاده ولوستلو په تخته ورته نمرې ورکوي او هڅوي یې، په پای کې د تختې پرمخ یو ځل بیا د اخلاص سورت لولي چې زده کوونکي خپلو غلطیو ته پاملرنه وکړي. | زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۵<br>دقیقې | ارزونه : څوک کولای شي د اخلاص سورت په یاد ولولي؟<br>۲ څوک ویلی شي چې د اخلاص سورت څو آیتونه لري؟<br>۳ څوک ویلی شي چې (قل هو الله احد) د کوم سورت اړوند آیت دی؟<br>کورنۍ دنده : ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د اخلاص سورت پنځه ځلې د خپلو والدینو (مور او پلار) په مخکې ولولي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې په احترام سره ځوابوي |

یو پنځوسم لوست

## سرلیک: د کوثر سورت (۱-۲) آیتونه

مخ:

وخت: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

موخې: زده کوونکي باید:

- د کوثر سورت اول او دویم آیتونه ولولي.
- د کوثر سورت کلمې صحیح تلفظ او حفظ کړای شي.
- د کوثر سورت له لوستلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات**

د کوثر سورت د قرآن کریم په سورتونو کې لنډ سورت دی؛ د حضرت عبدالله ابن عباس په قول دغه سورت په مکه مکرمه کې نازل شوی دی او د حضرت حسن او عکرمه رضي الله عنهما په قول په مدینه منوره کې نازل شوی دی.

د تدریس لارې: سوال او ځواب انفرادی مطالعه،

د تدریس توکي: کتاب، کتابچه، تخته تباشر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي، د بیلګې په ډول: څوک کولای شي د پروني لوست آیاتونه له سم تلفظ سره تلاوت کړي؟ | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي |
| ۲۵ دقیقې | بیا د سرلیک د (کوثر سورت) له لیکلو وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي. د تجوید قواعدوته په پام لرنې سره لوست په مناسب اواز سره پیل کوي. زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله د ټولګي په هره برخه کې د زده کوونکو ستونزې حل کوي.<br>بیا د نني لوست آیتونه پر تخته لیکي او خپله یې ټکي په ټکي لولي زده کوونکي یې ورسره تکراروي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | بیا له شپږو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او هریو په خپل وار سره د تختې له مخې یو یو آیت لولي، نور ټول زده کوونکي یې ورسره تکرار وي، ښوونکي ورته غلطۍ اصلاح کوي. | زده کوونکو ته چې کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۵ دقیقې | ارزونه :<br>۱ څوک کولای شي د نن ورځې لوست د یاده ولولي؟<br>۲ څوک وکولی شي د لوست لومړی آیت د تختې له مخې ولولي؟<br>۳ څوک ویلي شي د لوست دویم آیت د کتاب له مخې سم ولولي؟<br>کورنۍ دنده : ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست د خپلو مشرانو په مرسته یاد کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې احترام سره ځوابوي. |

دوه پنځوسم لوست

**سرلیک: د کوثر سورت (۳۰۲)**

مخ :

وخت : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقي)

موخې : زده کوونکي باید:

- دکوثر د سورت دویم او دریم آیتونه ولولي.
- د کوثر د سورت کلمې سمې تلفظ او یاد کړای شي.
- د کوثر سورت د ویلو سره مینه پیدا کړي.

**اړین معلومات**

حوض کوثر د الله جل جلاله لوی نعمت دی چې الله ﷻ رسول الله ﷺ ته ورکړی دی او په آخرت کې به مسلمان امت ددغو اوبو څخه برخمن شي او هر څوک چې دغه او به وڅکي تږی به نشي.

د تدریس لارې: مطالعه انفرادی، سوال ځواب.

د تدریس توکي: کتاب تخته، کتابچه تباشیر او داسې نور .

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکي د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي؛ مثلاً: څوک کولای شي د پرون ورځې د لوست آیت له تلفظ سره سم تلاوت کړي؟ وروسته ښاغلی ښوونکي د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي ( د کوثر سورت) او د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي، د تجوید قواعدو ته په پام لرنې سره لوست په مناسب اواز سره پیل کوي، بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله د خپلو ځانونو سره مطالعه کړي | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي. |
| ۲۵ دقیقې | ښوونکی د ټولګي په هر کونج کې د زده کوونکو ستونزې حل کوي، بیا هغه آیتو نه چې د نن ورځې لوست پوري تړاو لري پر تخته لیکي او ټکي په ټکي يې لولي زده کوونکي يې ورسره تکراروي. بیا له شپېړو زده کوونکو څخه غواړي چې پخپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، هریو، یو یو آیت د تختې له مخې تلاوت کړي او نور زده کوونکي يې ور پسې تکراروي، ښاغلی ښوونکی غلطي ورته اصلاح کوي، دغه تګلاره د نورو زده کوونکو د هڅو سبب يې هم ګرځي. | زده کوونکي ښوونکی لوست ته غوږ نیسي. زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په ښه ډول يې سرته رسوي. |
| ۱۰ دقیقې | ارزونه : ۱ څوک کولای شي د لوست دریم آیت د تختې له مخې ولولي؟<br>۲ څوک کولای شي د لوست څلورم آیت د کتاب له مخې صحیح ولولي؟<br>۳ څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي؟ | |
| ۵ دقیقې | کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د نن ورځې لوست د خپلو مشرانو په مرسته حفظ کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې احترام سره ځوابوي |

درې پنځوسم لوست

## سرلیک: دکوثر سورت يادول

مخ :

وخت : يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخي : زده کوونکي بايد:

- د کوثر د سورت آيتونه ولولي.
- د کوثر د سورت کلمې سمې تلفظ او حفظ کړي .
- د کوثر د سورت له لوستو سره مينه پيداکړي.

**اړين معلومات**

حوض کوثر هغه نهر دی چې اوبو يې له جنت څخه سر چينه اخيستې ده.

او د حشر په ميدان کې د ډند په څير جمع شوې دي.

کوثر په ځو معناوو سره راغلی يوه معنا يې هغه ده چې حضرت ابن عباسؓ په ټولو ترجيح ورکړې هغه (خير کثير) ده. د کوثر حوض په حقيقت کې حضرت محمدﷺ ته يو تسلي ورکوونکي زيری او په همدې وخت کې مشرکانو ته يو غاښ ماتوونکي ځواب دی چې هغوي به ويل دغه شخص ابتر دی يعني بې اولاده دی. الله (ج) ددغه سورت په نزول سره مشرکينوته ابتر وويل او خپل رسولﷺ ته يې حوض کوثر و بښلو.

د تدريس لارې : مطالعه ( انفرادي ) سوال ځواب

د تدريس توکي : کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه<br>۵<br>دقیقې | ښاغلی ښوونکی له حال احوال پوښتلو څخه وروسته د ټولګی نظم برابر وي، حاضري اخلي او د تیر لوست په هکله پوښتنې کوي .<br>لکه څوک کولای شي د پرون ورځې د لوست ایتونه په صحیح تلفظ سره تلاوت کړي؟<br>بیا ښاغلی ښوونکی دنوي لوست سرلیک ( کوثر سورت ) په تخته لیکي او د تجوید قواعدو ته په کتنې سره لوست په مناسب اواز سره پیل کوي.<br>بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او ښوونکی د زده کوونکو ستونزې حل کوي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵<br>دقیقې | بیا د کوثر سورت پر تخته لیکي، ټکي په ټکي یې لولي، زده کوونکي یې ورسره تکراروي، بیاله څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د تختې له مخې یو یو ایت تلاوت کړي، نور زده کوونکي یې ورسره تکراروي، ښوونکي صاحب په همدې و خت کې ستونزې ورته حل کوي، د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب هم ګرځي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۱۰<br>دقیقې | ارزونه : څوک کولای شي دنن ورځې لوست په یاد ولولي ؟<br>۲څوک کولای شي د کوثر سورت د تختې له مخې ولولي ؟<br>۳ څوک کولای شي د کوثر سورت د کتاب له مخې ولولي ؟ | |
| ۵<br>دقیقې | کورنۍ دنده : زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پنځه ځله تکرار کړي | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې احترام سره ځوابوي. |

څلور پنځوسم لوست

**سرليک : د عصر سورت (۱-۲) آيتونه**

**مخ**

وخت : يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخې : زده کوونکي بايد:

–دعصر سورت آيتونه ولولي.

– د عصر سورت آيتونه او کلمې صحيح تلفظ او ولوستلی شي.

– د عصر سورت له لوستلو سره مينه پيداکړي.

**اړين معلومات**

د عصر سورت مکي دی، په دغه سورت کې الله ﷻ د مازديگر په وخت باندې قسم ياد کړي او ويلي يې دي چې انسان په تاوان کې دی، مگر نه هغه کسان چې ايمان يې راوړی او ښايسته عمل يې کړي دی او هم يې نورو ته په حق او صبر سره توصيه کړې ده.

د تدريس لارې: مطالعه، انفرادي، سوال ځواب

د تدريس توکي: کتاب ، کتابچه ، تخته ، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| مقدمه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولگی نظم برابروي، حاضري اخلي او دتیر لوست په هکله پوښتنې کوي: څوک کولای شي د کوثر سورت په سم تلفظ سره ولولي؟<br>ښاغلی ښوونکی د نوي لوست سرلیک لیکلو څخه وروسته (سورت عصر) د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي. او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي البته د تجوید قواعدو ته پام لرنې سره. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. |
| ۲۵ دقیقې | بیا د عصر سورت دوه آیتونه د تختې پر مخ لیکي او لولي یې زده کوونکي یې ورپسې تکراروي بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله مطالعه کړي او که له کومې ستونزې سره مخامخ کیږی په احترام سره له ښوونکي پوښتنه کوي ښوونکی په ډیرې حوصلې سره ستونزې ورحل کوي . وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپل وار د تختې مخې ته راشي د تختې له مخې یو یو آیت تلاوت کوي نور زده کوونکي یې هم ورسره تکرار وي، ښوونکی غلطي ورته اصلاح کوي دغه شان کړنه د نورو د هڅونې سبب هم گرځي. | زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | ۱ زرونه : څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي؟<br>۲ څوک کولای شي یوه کلمه د لوست څخه د تختې له مخې ولیکي ؟<br>۳ څوک کولای شي د عصر سورت د کتاب له مخې صحیح ولولي؟ | زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په ښه ډول یې سرته رسوي. |
| ۵ دقیقې | کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د عصر سورت پنځه ځلې تکرار کړي. | زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې احترام سره ځوابوي. |

پنځه پنځوسم لوست :

## سرليک د عصر سورت (۳) آيت

مخ :

وخت : يودرسي ساعت (۴۵ دقيقې)

موخي : زده کوونکی بايد:

–د عصر سورت آيتونه تلاوت کړي .

– د عصر سورت کلمې صحيح تلفظ او حفظ کړای شي.

– د عصر سورت له لوستلو سره مينه پيدا کړي.

**اړين معلومات :**

حضرت امام شافعي رحمه الله ويلي که له قرآن کريم څخه يوازې د عصر سورت نازل شوی وای د مسلمانانو لپاره بس و، مفسرينو د عصر سورت په څو معناګانو سره تعبير کړی دی.

۱ – عصر د مطلق زمانې په معنا ۲– عصر د حضرت محمد صلي الله عليه وسلم د خوشحاله زمانې په معنا ۳– عصر د مازديګر لمونځ په معنا، د دغه سورت مبادي ايمان او نيک اعمال تشکيلوي.

د تدريس لارې : مطالعه انفرادي سوال ځواب

د تدريس توکي : کتاب ، کتابچه تخته ، تباشير اوداسې نور.

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>زده کوونکو ته چې د کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي، په ښه ډول يې سرته رسوي.<br><br>زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې په احترام سره ځوابوي. | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولگی نظم برابروي، حاضري اخلي او دتیر لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>مثلاً څوک کولای شي، د عصر سورت په صحیح تلفظ سره تلاوت کړي؟<br>بیا ښوونکی د نوي لوست سرلیک (عصر سورت) پر تخته لیکي او زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب اواز سره پیل کوي البته د تجوید په قواعدو سره بیا د عصر د سورت وروستی آیت پر تخته لیکي ټکي په ټکي يې ورته لولي، زده کوونکی يې ورسره تکرار وي، بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او که له کومې ستونزې سره مخامخ شي، له ښوونکي څخه پوښتنه کوي، ښوونکي ډیر په حوصله سره ځواب ورکوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړی چې په خپل وار سره د تختې مخې ته راشي، د تختې له مخې یو یو آیت تلاوت کړي نور زده کوونکی يې ورسره تکراروي او دغه میتود د نورو زده کوونکو د هڅونې سبب گرځي.<br>ارزونه : څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي ؟<br>۲ څوک ویلي شي د نن ورځې لوست کې څو کلمې د شد حرکت لري؟<br>۳ څوک کولای شي د عصر سورت د کتاب له مخې صحیح ولولي؟<br>کورنۍ دنده : ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د عصر سورت پنځه ځله تکرار کړي. | مقدمه ۵ دقیقې<br><br>۲۵ دقیقې<br><br>۱۰ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |

شپږ پنځوسم لوست.

**سرلیک : د عصر سورت**

صفه :

وخت : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

اهداف : زده کوونکي باید :

- دعصر سورت ولولي.
- د عصر سورت کلمې صحیح ولولي او هم یې یاد کړي.
- د عصر سورت له لوستلو سره مینه پیداکړي.

**اړین معلومات**

بسم الله الرحمنَ الرحمن الرَحیمَ

(وَالْعَصْرِ (۱) إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ (۲) إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ(۳))

ژباړه : د مازیگر په وخت قسم چې انسان په تاوان کې دی، هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نیک عمل یې کړی دی او یو او بل ته هم په صبر او حق سره توصیه کوي.

د تدریس لارې: سوال و ځواب (انفرادي) مطالعه

د تدریس توکي: کتاب (کتابچه) تخته تباشیر او داسې نور

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| زده کوونکی د ښوونکي پوښتنو ته ځواب وايي.<br><br><br><br><br><br>زده کوونکي د ښوونکي لوست ته غوږ نیسي.<br><br>زده کوونکو ته چې کوم فعالیت د سر ته رسولو دنده ورکړل شي په ښه ډول یې سرته رسوي.<br><br><br>زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې په احترام سره ځوابوي. | ښاغلی ښوونکی د حال احوال له پوښتلو څخه وروسته د ټولګي نظم برابروي، حاضري اخلي او دتیر لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>لکه: څوک کولای شي، د عصر سورت وروستي آیتونه په صحیح تلفظ سره تلاوت کړي.<br>ښوونکی د نوي لوست سرلیک پر تخته لیکي او زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب او از سره پیل کوي، البته د تجوید د قواعد و خیال ساتي .<br>بیا د عصر سورت وروستی آیتونه پر تخته لیکي او ټکي په ټکي یې زده کوونکو ته لولي او دوی یې ورسره تکراروي او که له کومې ستونزې سره مخامخ شي، له ښوونکی څخه پوښتنه کوي، ښوونکی ورته ډیر په سړه سینه او په ارامه فضاء کې ځواب وايي او ستونزه یې ورحل کوي.<br>بیاله څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، سورت څخه یو یو آیت په یاد ولولي او ښوونکی غلطي ورته اصلاح کوي، دغه رنګه کړنه د نورو زده کوونکو لپاره د هڅونې سبب ګرځي.<br>۱ ارزونه : څوک کولای شي د نن ورځې لوست په یاد ولولي؟<br>۲ څوک ویلی شي دعصر سورت څو آیتونه لري؟<br>۳ څوک کولای شي د عصر سورت د کتاب له مخې صحیح ولولي؟<br>کورنۍ دنده : ښوونکی زده کوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د عصر سورت پنځه ځلې تکرار کړي. | مقدمه ۵ دقیقې<br><br><br><br><br><br><br>۲۵ دقیقې<br><br><br><br><br><br>۱۰ دقیقې<br><br><br>۵ دقیقې |